د پوهنې وزارت
د تعلیمي نصاب د پراختیا، د ښوونکو د
روزنې او د ساینس د مرکز معینیت
د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي
کتابونو د تالیف لوی ریاست

# پښتو

## نهم ټولګی



د چاپ کال: ۱۳۹۰ هـ. ش.

پښتو

نهم ټولګی



ISBN 978-9936-25-069-7
9 789936 250697 >

د پوهنې وزارت
د تعليمي نصاب د پراختيا، د ښوونكو د روزنې او د ساينس د مركز معينيت
د تعليمي نصاب د پراختيا او درسي كتابونو د تاليف لوی رياست

# پښتو

## نهم ټولگی

د چاپ كال: ۱۳۹۰ هـ.ش.

**مؤلفین**:

څېړنپوه نعمت الله اندړ، څېړنوال سید محی الدین هاشمي
او د مؤلف مرستیال محمد سهراب دیدار

**ایډیټران**:

محمد زرین انځور، پوهنمل بریالی باجوړی

**دیني، سیاسي او فرهنګي کمیټه**:

ـ مولوي عبدالصبور عربي
ـ دکتور محمد یوسف نیازی
ـ حبیب الله راحل د پوهنې وزارت سلاکار د تعلیمي نصاب د پراختیا په ریاست کې.

**د څارنې کمېټه**:

ـ دکتور اسدالله محقق د تعلیمي نصاب د پراختیا، د ښوونکو د روزنې او د ساینس مرکز معین.
ـ دکتور شېرعلي ظریفي د تعلیمي نصاب د پراختیا د پروژې مسوول.
ـ د سرمؤلف مرستیال عبدالظاهر ګلستاني د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي کتابونو د تالیف لوی رئیس.

**کمپوز او ډیزاین**: صفت الله مومند



## ملي سرود

دا وطن افغانستـــان دی　　دا عزت د هـــر افـــغان دی
کور د سولې کور د تورې　　هر بچی یې قهرمــــان دی
دا وطن د ټولو کــور دی　　د بــــلوڅــــو د ازبکـــو
د پښتــــون او هزاره وو　　د تــــرکمنـــو د تاجکـــو
ورسره عرب، گوجــر دي　　پــــامیــریان، نورستانیـــان
براهوي دي، قزلباش دي　　هـــم ایمـــاق، هم پشه یان
دا هېـواد به تل ځلیږي　　لــکـــه لمـــر پر شنه اسمـان
په سینــه کې د اسیـــا به　　لــکـــه زړه وي جـــاویدان
نوم د حق مو دی رهبـــر　　وایو الله اکبر وایو الله اکبر

بسم الله الرحمن الرحیم

## د پوهنې د وزیر پیغام

**ګرانو ښوونکو او زده کوونکو،**

ښوونه او روزنه د هر هېواد د پراختیا او پرمختګ بنسټ جوړوي. تعلیمي نصاب د ښوونې او روزنې مهم توکی دی چې د معاصر علمي پرمختګ او ټولنې د اړتیاوو له مخې رامنځته کېږي. څرګنده ده چې علمي پرمختګ او ټولنیزې اړتیاوې تل د بدلون په حال کې وي. له دې امله لازمه ده چې تعلیمي نصاب هم علمي او رغنده انکشاف ومومي. البته نه ښایي چې تعلیمي نصاب د سیاسي بدلونونو او د اشخاصو د نظریو او هیلو تابع شي.

دا کتاب چې نن ستاسو په لاس کې دی، پر همدې ارزښتونو چمتو او ترتیب شوی دی. علمي ګټورې موضوعګانې پکې زیاتې شوې دي. د زده کړې په بهیر کې د زده کوونکو فعال ساتل د تدریسي پلان برخه ګرځېدلې ده.

هیله من یم دا کتاب له لارښوونو او تعلیمي پلان سره سم د فعالې زده کړې د میتودونو د کارولو له لارې تدریس شي او د زده کوونکو میندې او پلرونه هم د خپلو لوڼو او زامنو په باکیفیته ښوونه او روزنه کې پرله پسې ګډه مرسته وکړي چې د پوهنې د نظام هیلې ترسره شي او زده کوونکو او هېواد ته ښې بریاوې ور په برخه کړي.

پر دې ټکي پوره باور لرم چې زموږ ګران ښوونکي د تعلیمي نصاب په رغنده پلي کولو کې خپل مسؤولیت په ریښتوني توګه سرته رسوي.

د پوهنې وزارت تل زیار کاږي چې د پوهنې تعلیمي نصاب د اسلام د سپېڅلي دین له بنسټونو، دوطن دوستۍ د پاک حس په ساتلو او علمي معیارونو سره سم د ټولنې د څرګندو اړتیاوو له مخې پراختیا ومومي.

په دې ډګر کې د هېواد له ټولو علمي شخصیتونو، د ښوونې او روزنې له پوهانو او د زده کوونکو له میندو او پلرونو څخه هیله لرم چې د خپلو نظریو او رغنده وړاندیزونو له لارې زموږ له مؤلفانو سره د درسي کتابونو په لا ښه تالیف کې مرسته وکړي.

له ټولو هغو پوهانو څخه چې د دې کتاب په چمتو کولو او ترتیب کې یې مرسته کړې، له ملي او نړیوالو درنو مؤسسو او نورو دوستو هېوادونو څخه چې د نوي تعلیمي نصاب په چمتو کولو او تدوین او د درسي کتابونو په چاپ او وېش کې یې مرسته کړې ده، مننه او درناوی کوم.

ومن الله التوفیق

فاروق وردګ

د افغانستان د اسلامي جمهوریت د پوهنې وزیر

# لیکلړ


| شمېره | سرلیکونه | مخ |
|---|---|---|
| لومړی لوست | د لوی څښتن(ج) په نامه | ۱ |
| دویم لوست | د اسلام د ستر پیغمبر(ص) ستاینه | ۴ |
| دریم لوست | د ملي یووالي ارزښت او اړتیا | ۹ |
| څلورم لوست | ولسي نرخونه | ۱۳ |
| پنځم لوست | فعل : د جملې مهمه برخه | ۱۷ |
| شپږم لوست | کار او زیار | ۲۵ |

| | | |
|---|---|---|
| اووم لوست | د اوبنکو ارزاني | ۲۹ |
| اتم لوست | ملي ارشيف | ۳۳ |
| نهم لوست | عادل واکمن | ۳۷ |
| لسم لوست | عبدالرؤف بېنوا | ۴۱ |
| يوولسم لوست | د ځنګلونو ارزښت | ۴۷ |
| دولسم لوست | لوبې او روغتيا | ۵۱ |
| ديارلسم لوست | ويکتور هوګو | ۵۷ |
| څوارلسم لوست | د بشر حقونه | ۶۱ |
| پنځلسم لوست | بلخي ابن سينا | ۶۷ |
| شپاړسم لوست | د کابل بالا حصار | ۷۳ |
| اوولسم لوست | بي بي زينب | ۷۹ |
| اتلسم لوست | کتاب او کتابتون | ۸۵ |
| نولسم لوست | د سولې نړۍ | ۹۱ |
| شلم لوست | قيدونه | ۹۵ |
| يوويشتم لوست | نشه ـ ستره بدمرغي | ۱۰۱ |
| دوه ويشتم لوست | پته خزانه | ۱۰۵ |
| درويشتم لوست | مېرمن مستوره شال | ۱۱۱ |
| څلورويشتم لوست | د مائينونو شکمني سيمې | ۱۱۷ |
| پنځه ويشتم لوست | باميان يوه لرغوني تاريخي سيمه | ۱۲۳ |
| شپږويشتم لوست | سره مياشت | ۱۲۷ |
| اوويشتم لوست | صدرخان خټک | ۱۳۳ |
| اته ويشتم لوست | د ولسي ادب ډولونه او ځانګړتياوې | ۱۳۹ |
| | وييپانګه | ۱۴۵ |
| | اخځليکونه | ۱۵۲ |

لومړی لوست

# د لوی څښتن ﷻ په نامه



- څوک د ډېرو سترو صفتونو وړ او لایق دی؟
- د تیرو ټولګیو د پښتو لوستونو په کتابونو کې مو د حمد تر سرلیک لاندې د چا ستاینې او صفتونه لوستلي دي؟

حمد په لغت کې ثنا او صفت ته وایي او په اصطلاح کې هغه منظومه وینا یا کلام دی چې د الله ﷻ ستاینه پکې شوې وي. اوس له تاسو څخه څوک کولای شي لاندې پوښتنو ته ځواب ووایي؟

موږ او تاسو د دې ټولګي د لوست پیل د((یونس خیبري)) په حمدیه شعر کوو.



لکه ذات دی له آفته په امان ستا
هسې نشته دی صفات لره نقصان ستا
که په سل ژبې بې وايي تر قيامته
يو صفت به تمام نه کا واصفان ستا
له ازله قديم ته بې بې زواله
ابدا سره هستي ده جاويدان ستا
د قيامت په سخت منزل به يې شفيع وي
چا چې لاس دی لګولی په قرآن ستا
فرښتې دې مقېدې پر خدمت شو ې
د فرمان رسۍ په غاړه انس وجان ستا
چې په احسن تقويم باندې پيدا شو
دا عجب فضل عظيم دی په انسان ستا
له عدمه دې وجود د هستۍ ورکړ
په دا فضل دې شاکر دي بندګان ستا
چې دې خلاص کړ د زنار له سخته بنده
دم په دم دې شکر کاندي مسلمان ستا
اميد وار د خدای ﷻ له فضله شه ((يونسه))!
ترکرمه پورې هيڅ دي ګناهان ستا

(يونس خيبری) زموږ د پخوانيو شاعرانو له ډلې څخه د دولسمې هـ .
ق. پېړۍ نوميالی شاعر دی. د رحمان بابا د ادبي مکتب پيرو او د شعرونو ديوان يې چاپ شوی دی.

**د متن لنډيز:**

د الله ﷻ ذات بې زواله او صفتونه يې ډېر زيات دي. صفتونه او ستاينې يې دومره ډېرې دي چې هيڅوک يې پای ته نشي رسولی. فرښتې او ملايکې، انس و جن د هغه ذات فرمان منونکي دي. انسان يې په ډېرې ښکلې څېرې پيدا کړی چې دا يې پرې لوی فضل او احسان کړی دی. هيڅوک بايد د خدای ﷻ له فضل او کرم څخه ناهيلي نشي. که هر څومره ګناه يې هم کړي وي، د خدای ﷻ په فضل او کرم ببښل کېدای شي.

## فعاليتونه

۱ـ د ښوونکي له لوستلو وروسته دې زده کوونکي متن په چوپتيا ولولي، بيا دې څو تنه د نورو په استازيتوب متن په لوړ غږ ولولي او نور زده کوونکي دې ورته غوږ ونيسي چې د کلمو سم تلفظ او د جملو د جوړولو ترکيب او ترتيب زده کړي.

۲ـ زده کوونکي دې په خپلو کتابچوکې له متن څخه د خپلې خوښې يو بيت له معنا سره وليکي.

۳ـ ښوونکی دې لاندې پوښتنه وکړي چې د زده کوونکو نظرونه د ځوابونو په ترڅ کې واوري:

- د الله تعالیٰ له بې شمېرو صفتونو څخه څوک د يو څو صفتونو په هکله خبرې کولای شي؟
- د لاندې بيت په هکله خپل نظر وړاندې کړئ:

د قيامت په سخت منزل به يې شفيع وي
چـا چې لاس دی لګولی پـه قـــرآن سـتا

- زده کوونکي دې په دوو ډلو وويشل شي او هغوی ته دې دنده ورکړل شي چې

د يوې ډلې زده کوونکي له متن څخه يو بيت ووايي او د بلې ډلې په استازيتوب دې يو زده کوونکی د هغه بيت معنا او مفهوم ووايي.

۴ـ زده کوونکي دې د لاندنيو کلمو ضدکلمې په خپلو کتابچو کې وليکي او بيا دې هغه ضدکلمې په جملو کې هم وکاروي:

نقصان عظيم سخت اميدوار خلاص صفت

۵ـ زده کوونکي دې پخپلو کتابچو کې د متن تش ځايونه ډک کړي:

- يونس خيبري زموږ د پخوانيو........................ له ډلې څخه دی.
- يونس د ................. ادبي مکتب پيرو و.
- ............... په لغت کې صفت ته وايي.

۶ـ زده کوونکي دې لاندې بيت په نثر واړوي:

د قيامت په سخت منزل به يې شفيع وي
چا چې لاس دی لګولی په قرآن ستا

## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د کورنۍ دندې په توګه د ځينو هغونعمتونو په هکله چې الله ﷻ خپلو بندګانو ته ورکړي دي، څو کرښې وليکي.



# د اسلام د ستر پيغمبر ﷺ ستاينه



- تاسې د مخه کله نعت لوستلی یا اورېدلی دی؟

•نعت په لغت کې غوره او نیکې ستاینې ته وایي او په اصطلاح کې هغه منظومه او منثوره وینا ده چې د اسلام د ستر پیغمبر حضرت محمدﷺ ستاینه او صفت پکې شوی وي.

•له تاسو څخه څوک لاندې پوښتنو ته ځوابونه ویلای شي:

- د نعت ویلو اصلي موخه او هدف څه وي؟
- الله ﷻ پیغمبران د څه لپاره رالېږلي دي؟
- مورِ او تاسې د دې ټولګي په دویم لوست کې د ((ګوهر کاکاخیل)) لیکلی نعت لولو:



په دنیا د جهالت پردې خورې وې
په هر لورې د ګناه تورې تیارې وې
ضلالت او ګمراهۍ کې انسان غرق و
په حلال او په حرام کې نه څه فرق و
د چا و معبود آتش، د چا شجر و
د چا ستوری د چا سیند د چا حجر و
لوی آفت کې مبتلا ټوله دنیا وه
قام په قام او کور په کور یوه بلا وه
خدای ﷻ راولیږه رحمت و خپل جهان ته
د رڼا لاره یې وښوده انسان ته
د باطل او د حق فرق یې ورعیان کړ
ټول عالم یې له باطل نه روګردان کړ
السلام والصلوة وایي ((ګوهر))
ته شفیع دده په ورځ شه د محشر

((خیرالحق ګوهر کاکاخیل)) د پښتو ژبې معاصر شاعر او د پښتونخوا اوسیدونکی دی. د نعتونو ډېرې غوره بېلګې لري.

## د متن لنډيز:

هغه مهال چې پر ټوله نړۍ د جهالت او ناپوهۍ تپه تياره خپره وه. بشريت په بې لاريو او خپل سريو سر و، د حق او باطل ترمنځ يې توپير نشو کولای. د خدای ﷻ نمانځنې ځای اور نمانځنې، بت نمانځنې او ډول ډول خرافاتو نيولی و. انسانيت له لويې تباهۍ سره مخامخ و، لوی خدای ﷻ پر بشريت رحم وکړ. د هغوی د لارښوونې او رښتينې لارې ته د رابللو لپاره يې حضرت محمد ﷺ د خپل استازي په توګه وګوماره. قرآن يې پرې نازل کړ. د ټول بشريت لپاره يې د دنيوي او اخروي نيکمرغۍ زيری له ځان سره راوړ او بشريت يې له ګمراهۍ او تباهۍ څخه وژغوره.

## فعاليتونه

۱ــ د ښوونکي له لوستلو او لازمو څرګندونو وروسته دې زده کوونکي متن په چوپتيا سره ولولي. بيا دې ښوونکی له څو تنو زده کوونکو څخه وغواړي چې متن د ټولګي پر وړاندې په لوړ غږ ولولي. نور زده کوونکي دې غوږ ونيسي.

۲ــ زده کوونکي دې په دوو ډلو وويشل شي: يوه ډله دې د متن ((دري)) کلمې او بله دې د ((پښتو)) کلمې په خپلو کتابچو کې جلا جلا لست کړي. بيا دې له هرې ډلې څخه يو تن د نورو په استازيتوب د خپلې ډلې لست کړې کلمې د ټولګي په مخکې ولولي.

۳ــ ښوونکی دې له زده کوونکو وپوښتي چې:

- حضرت محمد ﷺ په څه ډول حالاتو کې په پيغمبرۍ مبعوث شو؟
- حضرت محمد ﷺ وګړي په څه ډول د اسلام سپيڅلي دين ته رابلل؟

۴ــ زده کوونکي دې متن په غور ولولي او په هغه کې دې ((متضادې کلمې)) په نښه کړي او بيا دې يې په جملو کې وکاروي.

۵_ ښوونکی دې په وار سره له زده کوونکو وغواړي چې د ټولګیوالو په مخکې د نعت مفهوم په خپله ژبه و وایي.

۶_ زده کوونکي دې لاندې پوښتنو ته سم ځواب په پنسل په ☐ نښه کړي.

د اسلام ستر پیغمبر په داسې وخت کې په پیغمبرۍ مبعوث شو چې:

الف: په ټوله نړۍ کې امن و.

ب: په ټوله نړۍ کې د جهالت او ناپوهۍ تیاره خپره وه.

ج: بت نمانځنه او اور نمانځنه نه وه.

۷_ زده کوونکي دې د لاندې کلمو ((جمع کلمې)) په خپلو کتابچو کې ولیکي او بیا دې هغه په جملو کې وکاروي:

کور لار قام انسان ستوری

## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې بلې ورځې ته د کورنۍ دندې په توګه څو داسې جملې راوړي چې پنځه واره (ی) ګانې پکې کارول شوي وي.

هر څوک چې له نورو څخه زیاته پوهه لري، ارزښت یې هم له نورو څخه زیات دی.

(حدیث شریف)

درېیم لوست

# د ملي يووالي ارزښت او اړتيا



افغانستان د ټولو افغانانو ګډ کور دی. ګډ کلتور او فرهنګ لري او ټولو له خپل هېواد او ټاټوبي څخه په ګډه دفاع کړې او کوي يې . له ګډو وياړلو کارنامو څخه برخمن او خپل ملي يووالی يې په هر حالت کې ساتلی دی.

دلته د ملي يووالي په ارزښت خبرې کوو. د مخه تر دې چې د ملي يووالي ارزښت درو پېژنو، دې لاندې پوښتنې ته ځواب ووايئ:

- که د يوې سيمې يا هېواد وګړي په خپلو کې ملي تړون او يووالی و نه لري له کومو ستونزو سره به مخامخ شي؟

هغه وګړي چې په يوې ټاکلې جغرافيوي سيمه کې اوسي، ګډ تاريخ، شريک فرهنګ، عنعنات او ملي وياړونه لري، ملت بلل کېږي. هر ملت له بېلا بېلو ميشتو قومونو او ولسونو جوړ دی چې ګډ برخليک لري او په يوه نامه يادېږي.

افغانستان د يو واحد ملت په توګه د ټولو افغانانو ګډ کور دی. ټول په دې ستر کور کې زېږېدلي او رالوی شوي دي، نو بايد له يو بل سره مينه، په خپلو کې ژور تړون او ملي يو والی ولري او تر يوه بيرغ لاندې ژوند وکړي.



زموږ د هېواد ټولو اوسېدونکو د تاريخ په اوږدو کې ګډ ژوند لرلی، د خپلې خاورې او هېواد له ملي نواميسو او ځمکنۍ بشپړتيا څخه يې په ګډه ساتنه او دفاع کړې ده.

افغانستان پر هر افغان حق لري چې د ودانۍ، سوکالۍ، سراسري سولې، امن او ملي وحدت د ساتلو په لاره کې هر ډول سربښندنې ته چمتو وي.

د ملي يو والي د ټينګښت او تامين لپاره اړينه ده چې هر ډول توپيرونه له منځه يوسو او يو بل ته د وروری غېږه پرانيزو او په ټولو ملي چارو کې د يو واحد ملت په توګه دريځ ولرو.

که د نړۍ لوی او پرمختللي هېوادونه وګورو، نو وينو ټول هغه توپيرونه چې د دوی ملي يووالي ته زيان رسوي، له منځه يې وړي او پرځای يې په پوره يووالي، د پوهې او ټکنالوژۍ خواته مخه کړې ده . بشري او انساني کرامت ته يې په درناوي د ملي يووالي روحيه رامنځته کړې او د ((زه)) يا ((زه يم)) پرځای يې د ((موږ)) يا ((موږ يو)) مفکوره او روحيه روزلې او پاللې ده.

په يوه ټولنه يا هېواد کې د ملي يووالي په له منځه تللو سره هغه هېواد اوټولنه له سترې ګډوډۍ سره مخامخ کېږي چې د حق او رښتينولۍ خوا يې کمزورې، زور زياتی او نابرابري پکې له يوې ورځې بلې ته زياتېږي. د خوابديو، خپل منځي شخړو او دښمنيو لمنه پراخيږي او په دې ترتيب بهرني دښمن ته د هر ډول لاس وهنې لارې چارې برابرېږي.

موږ بايد د خپل ملي يووالي په ارزښت او اهميت پوه شو او په دې وپوهېږو چې زموږ د هېواد د ودانۍ، نيکمرغۍ او سوکالۍ راز په همدې کې نغښتی دی، نو د ټينګښت او ساتنې لپاره يې بايد هر اړخيزې هلې ځلې وکړو. د ځاني ګټو او غوښتنو پر ځای ملي ګټې مقدمې او محترمې وګڼو. هغه عوامل بايد له منځه يو سو چې زموږ د ملي يووالي بنسټونه کمزوري کوي او له منځه يې وړي.

د متن لنډيز:

ملي يووالی د هر هېواد د پرمختګ اوسوکالۍ لپاره ډېر ضروري دی، نو د ساتلو او ټينګښت لپاره يې بايد هر اړخيزې هلې ځلې وشي. که په هېواد کې د ملي يووالي مزي سست او يا وشليږي، نو هغه له سترو ګډوډيو او بدمرغيو سره مخامخ او بهرني دښمن ته د هر ډول لاس وهنې لارې چارې برابرېږي.

## فعالیتونه

۱ـ د ښوونکي تر متن لوستنې او لا زمو څرګندونو وروسته دې زده کوونکي متن په چوپتیا سره ولولي. بیا دې څو تنه زده کوونکي د ټولګي په مخکې د متن هغه برخه ولولي چې د دوی ډېره خوښېږي.

- څو زده کوونکي دې دګډو دودونو په هکله ټولګیوالو ته خبرې وکړي.

۲ـ زده کوونکي دې د دې لاندې کلمو مترادفې کلمې په خپلو کتابچو کې ولیکي:

ګډ      ستر      یووالی      ودانی

۳ـ یو زده کوونکی دې دا لاندې پوښتنې پر تخته ولیکي، نور دې دهغو ځوابونه په خپلو کتابچو کې ولیکي:

- ملي یووالی څه ګټې لري؟
- بې اتفاقي څه زیانونه لري؟
- د ملي یووالي د ټینګښت لپاره څه شي ته ډېره اړتیا ده؟
- تاسو به له دې وروسته د ملي یووالي د ټینګولو لپاره څه کارونه سرته ورسوئ؟
- د ګرامر له مخې د سمې جملې له شمېرې شخه په پنسل کرښه چاپیره کړئ:

الف: افغانستان د ټولو افغانانو ګډ کور دی.

ب: افغانستان د ټول افغانانو ګډ کور دی.

ج: افغان د ټولو افغانانو ګډ کور و.

## کورنۍ دنده

که تاسې د خپلې کوڅې، کلي او یا سیمې مشران او یا لوړ پوړي دولتي چارواکي شئ د ملي یووالي لپاره به څه وکړئ؟ په دې اړه یو څو کرښې ولیکئ.

# ولسي نرخونه



- ستاسې په کور، کلي او ولس کې چې د خلکو ترمنځ کومه ستونزه یا شخړه پېښه شي شخړه یې حل کوي؟
- په ولس، کور او کلي کې ځینې داسې وګړي پېژنئ چې خلکو ته د ورپېښو ستونزو په هکله پرېکړې او فیصلې کوي؟

زموږ په کلیوالو سیمو او ولس کې یو لړ داسې قوانین او اصول شته چې وګړي خپلې ستونزې او شخړې په هغو حل کوي. دا قوانین په کلیو او ولس کې د ټولنیزنظم د سمون لپاره له ډېرې لرغونې زمانې څخه دود دي. موږ دلته پر هغو باندې د پوهېدو په هیله تاسې ته دغه ولسي قوانین یا نرخونه په لنډ ډول درپېژنو.

افغان ولس بډای کلتور لري چې له ډېرو غوره دودونو او عنعنو څخه برخمن دی . دغه دودونه له پیړیو پیړیو را هیسې د خلکو د ټولنیز ژوند له بهیر سره مله راغلي دي. که د وخت او حالا تو په اوښتون سره یکې لږ و ډېر بدلون هم رامنځته شوی، بیا یې هم خپلې لرغونې ځانګړنې تر ډېره ساتلې دي . دوی د تاریخ په اوږدو کې د خپل قبیلوي او ټولنیز ژوند د سمبالښت او ادارې لپاره یو لړ ټاکلي قوانین لرلي دي چې د پښتنو په کلتور او عرف کې هغو ته ((ولسي نرخونه)) وایي.

ولسي نرخونه په واقعیت کې یو لړ ولسي قوانین دي چې معمولاً زموږ کلیوال خلک د خپل ټولنیز ولسي ژوند په اړوند زیاتره حقوقي، جزایي او نور مسایل د هغو پر بنسټ حل و فصل کوي. دغه ولسي قوانین که څه هم په بېلا بېلو ټبرونو کې لږ و ډېر خپل منځي توپیرونه هم لري، خو په کُل کې بیا ټول ډېرې ګډې ځانګړنې لري چې هغه زموږ له لرغوني بډای کلتور څخه سرچینه اخلي او د ګډ کلتور استازیتوب کوي.

سره له دې چې له نرخونو سره د ولس هر وګړی لږ و ډېره اشنایي لري، خو په ټبر کې پر هغو د پوره پوهیدو او په ټولنه کې د پلي کولو لپاره یې ځانګړي کسان معلوم وي چې هغوی ته په ولس کې خلک ((مرکچیان)) یا ((نرخیان)) وایي.

کله چې په کلیوالي او ولسي ژوند کې چا ته کومه ستونزه او لانجه وریپښه شي، نو د حل لپاره یې دغو معلومو نرخیانو یا مرکچیانو ته مراجعه کوي او هغوی د یوې جرګې په بڼه رابولي. کله چې هغوی سره جرګه شي، نو پر اړونده موضوع له هر اړخیز بحث او غور وروسته له دغو ټاکلو نرخونو یا ولسي قوانینو څخه په کار اخیستنې یوه پرېکړه او حکم کوي. مقابل لوری اړوي چې هغې پرېکړې ته غاړه کېږدي. له پرېکړې څخه د سرغړونې په صورت کې د نغدي یا نورې جریمې په ورکړه اړګڼل کېږي چې نوموړې جریمې ته (مچلغه) وایي.

له دغو نرخونو څخه د زور زیاتي د پېښو د مخنیوي او له زیانمن شوي لوري سره د ملاتړ او مرستې په برخه کې ډېر کار اخیستل کېږي. زموږ په هېواد کې د احمدزیو، وزیرو، مومندو او نورو نرخونه خورا مشهور دي.

څرنګه چې ولسي نرخونه د کليوال ولسي او ټولنيز ژوند د سمبالښت او سمون لپاره اغيزناک نقش تر سره کولی شي، نو پر هغو د پوهيدنې او د يوې غوره عنعنې په توګه د ځينو ولسي نرخونو د ساتنې او پالنې لپاره بايد لازمې هڅې وشي.

د متن لنډيز:

پښتانه په کور، کلي او ولس کې د شخړو د هوارې لپاره يو لړ ټاکلي قوانين لري چې ((ولسي نرخونه)) يې بولي. دغه نرخونه که څه هم په قبيلوي کچه لږ و ډېر توپير هم سره لري، خو بيا هم په عامه توګه ډېرې ګډې ځانګړنې لري چې دا زموږ د ګډ کلتور او ملي عنعنو استازيتوب کوي. ولسي نرخونه چې د ولسي شخړو او لانجو په حل و فصل کې ډېر مهم او بنسټيز رول لري، په ولس کې د معلومو کسانو له خوا معمولاً د جرګو په ترڅ کې په عمل کې پلي کېږي، دغو کسانو ته ((نرخيان)) وايي.

## فعاليتونه

۱ـ زده کوونکي دې متن په چوپتيا سره ولولي. وروسته دې د متن يوه يوه برخه يو يو زده کوونکی په خپله خوښه د نورو په استازيتوب د ټولګي په مخکې په لوړ غږ ولولي.

۲ـ زده کوونکي دې په متن کې هغه کلمې په نښه کړي چې په ((ټ)) توري پيل شوي وي او هغه دې په مناسبو جملو کې وکاروي.

۳ـ زده کوونکي دې په دريو ډلو وويشل شي: يوه ډله دې په متن کې ((صفتونه))، بله ((نومونه)) او بله دې ((ضميرونه)) پيدا کړي اود هرې ډلې يو تن دې د نورو په استازيتوب هغه پرتخته وليکي.

۴_ ځینې زده کوونکي دې د ټولګي مخې ته راوبلل شي چې د ولسي نرخونو پر ارزښت او اهمیت خبرې وکړي.

- له ځینو زده کوونکو څخه دې وغوښتل شي چې د جرګې د عنعنې په اړه خپل نظرونه څرګند کړي.

۵_ د دې لاندې پوښتنو په لړ کې دې د درس د موضوع په اړه د زده کوونکو د پوهېدنې د کچې ارزونه وشي:

- ولسي نرخونه څه ته وايي؟
- څوک په ولس کې د پرېکړو واک او صلاحیت لري؟
- هغه څوک چې د نرخونو په وسیله په کور، کلي او ولس کې ستونزې او شخړې هواروي، خلک یې په کوم نوم پېژني؟

۶_ د سمو ځوابونو له شمېرې څخه په پنسل کرښه چاپېره کړئ:

الف: په ولس کې ستونزې او شخړې هر څوک هوارولی شي.

ب: په ولس کې ستونزې او شخړې یوازې ((نرخیان)) او ((مرکچیان)) حل کوي.

ج: هیڅوک یې نشي هوارولی.

## کورنۍ دنده

که چېرې د زده کوونکو په سیمه کې کومه شخړه د جرګې په واسطه حل شوې وي د هغې په اړه دې معلومات تر لاسه کړي او د بلې ورځې په درسي ساعت کې دې خپلو ټولګیوالو ته پرې خبرې وکړي.

# فعل: د جملې مهمه برخه




ژبه انسان ته يوه الهي پيرزوينه ده چې په ټولنه کې د وګړو ترمنځ د پوهونې او راپوهونې لپاره ډېره مهمه وسيله ګڼل کېږي.
له ژبې پرته زده کړه په اغېزناکه توګه تر سره کېدای نشي.
ژبه له بېلابېلو غږونو څخه جوړه ده چې له همدغو غږونو څخه د کلمې بېلابېل ډولونه (لکه: نومونه، صفتونه، ضميرونه، ادات، فعلونه او نور) جوړېږي. تاسې د هغو زياتره ډولونه په تېرو ټولګيو کې لوستي دي. د کلمو له دغو بېلابېلو ډولونو څخه جمله جوړېږي.
فعل د جملې ډېره مهمه برخه ده چې له هغې پرته جمله نه جوړېږي، دلته يې درپېژنو:

فعل هغې کلمې ته وايي چې په يوه زمانه يا ټاکلي وخت کې د يوه کار يا يوې پېښې په کيدو يا د يوه حالت په راڅرګندېدو دلالت کوي.

يا فعل د وينا هغه مهمه برخه ده چې له هغې پرته جمله نيمګړې بلل کېږي.

## د فعل ډولونه:

په پښتو کې فعلونه ډېر ډولونه لري او له څو پلوه په بېلا بېلو ډولونو ويشل کېږي چې دلته يې ځينې ډولونه درپيژنو:

د معنا له مخې د فعل ډولونه:

فعل د معنا له مخې په دوو سترو ډولونو ويشل کېږي :

لازمي فعل او متعدي فعل

### ۱_ لازمي فعل:

هغه دی چې يوازې په فاعل پای ته رسيږي او مفعول نه لري.

لازمي فعل په تېره او نا تېره زمانه کې د جملې د فاعل لپاره ګردانيږي يا فعل له فاعل سره سمون او مطابقت لري، لکه:

پلوشه لاړه.

زيرک راغی.

زه ځم.

موږ ځو.

### ۲_ متعدي فعل:

هغه دی چې په جمله کې پر فاعل سربېره مفعول هم لري.

يا فعل په تېره زمانه کې د مفعول لپاره اوړون مومي (ګردانيږي).

دغه اوړون يې د شخص، عدد او جنس له پلوه ترسره کېږي، لکه په دې بېلګو کې:

بريالي خط وليکه.

احمد زه ولیدلم.

احمد موږ ولیدلو.

## د زمانې له پلوه د فعل ډولونه:

فعل د زمانې له پلوه په درې ډوله دی:

یا په بله وینا: د فعل پېښېدل او د یو کار یا یو حالت واقع کېدل په درېو زمانو پورې اړه لري:

تېر مهال چې (ماضي) هم ورته وايي، اوس مهال چې (حال) يې بولي او راتلونکی مهال چې (مستقبل) يې نوموي.

دلته دا هر ډول په لنډه توګه درپېژنو:

### ۱ــ تېر مهال (ماضي) فعل:

هغه دی چې د یو کار ترسره کېدو یا د یوې پېښې له پېښېدو څخه په تېر مهال یا زمانه کې بیان کوي، دا لاندې ډولونه لري:

ــ مطلقه ماضي: ما خط ولیکه.

ما ډوډۍ وخوړه.

ــ استمراري ماضي: ما خټکی خوړ.

تا خط لیکه.

ــ نژدې ماضي: زه ورغلی یم.

دا راغلې ده.

ما لیک لیکلی دی.

ــ لیرې ماضي: ما لیدلې وه.

تا لیک لیکلی و.

دی ورغلی و.

ـ احتمالي ماضي: مابه ليکلي وي.

تا به خوړلي وي.

ښايي ما به ليکلي وي.

گوندې ده به ليدلي وي.

## ۲ـ د حال فعل:

هغه فعل دی چې په اوسنۍ زمانه کې د يو کار يا يو حالت په ترسره کيدو دلالت کوي.

دا فعل د فعل په ريښې پورې د فاعل د روستاړو (م، ې، و، ئ، ي) په نښلولو سره جوړيږي، لکه:

زه ليکم.

زه ځم.

ته ليکې.

ته ځې.

ته راځې.

موږ ځو.

موږ راځو.

تاسې ليکئ.

تاسو ځئ.

تاسو راځئ.

دی ليکي.

دی ځي.

دی راځي.

دوی ليکي.

دوی ځي.

دوی راځي.

د حال فعلونه دا لاندې ډولونه لري:

## مطلق حال:

هغه فعل دی چې په اوسنۍ زمانه کې د یو کار سرته رسېدل په عادي او مطلق ډول بیانوي او دکار دوام ونه لري، لکه:

ډوډۍ مې وخوړه.

خط مې ولیکه.

## استمراري حال فعل:

د یو کار سرته رسیدل په اوس مهال کې د دوام په حال کې بیانوي، لکه:

باران وریږي.

لیک لیکم (یعنې د لیکلو په حال کې یم.)

## التزامي (احتمالي) حال:

په اوسنۍ زمانه کې د یو کار پېښېدل د تمنا، شرط او شک په ډول بیانېږي، لکه:

ښایي لاړ شم. ، کاشکې راشي.

## امر فعل:

هغه دی چې د یو کار د سرته رسولو غوښتنه کوي، لکه: لاړ شه!، لاړشئ، راشه!، راشئ،کښینه.

کښینئ.

وخوره.

وخورئ او نور.

### نهی فعل:

د یو کار نه‌کولو هیله او غوښتنه کوي، لکه: مه ځه، مه ځئ، مه راځه، مه راځئ.

### ۳_ مستقبل فعل:

هغه فعل دی چې په راتلونکې زمانه کې د یو کار د سرته رسولو یا د یو حالت په بیانولو دلالت کوي.

په بله وینا: په راتلونکي زمانه کې د یو کار کېدل څرگندوي.

مستقبل فعل له اوس مهال (حال) فعل څخه د (به) ادات په زیا تولو جوړېږي، لکه:

زه به ولیکم.

ته به ولیکې.

زه به وڅښم.

ته به وڅښې.

دوی به وخوري.

تاسې به وخورئ.

مستقبل فعل دوه بنې لري:

بشپړ، لکه:

و به لیکم، و به لیکې.

مجهوله بڼه، لکه: و به لیکل شي، و به کښل شي.

نابشپړ، لکه:

لیکم به ، لیکو به، .

مجهوله بڼه، لکه: خوړل کېږم به، غورځېږم به.

د متن لنډیز:

فعل هغه کلمه ده چې په یوه زمانه یا ټاکلي وخت کې د یو کار یا یوې پېښې په کېدو دلالت کوي. له فعل پرته جمله نه جوړېږي او نیمګړې ګڼل کېږي. فعل ډېر ډولونه لري. د معنا له مخې یې مهم ډولونه لازمي او متعدي دي.

د زمانې له مخې په تېر مهال یا ماضي فعل، اوسمهال یا حال فعل او مستقبل یا راتلونکی فعل باندې وېشل کېږي چې دا هر یو ځانته نور بېل بېل ډولونه هم لري.

## فعالیتونه

۱ـ زده کوونکي دې متن په چوپتیا سره ولولي، بیا دې څو تنه د نورو په استازېتوب د ټولګي په وړاندې متن په لوړ غږ ولولي. نور زده کوونکي دې په ځیر سره غوږ ونیسي.

۲ـ زده کوونکي دې په دوو ډلو وویشل شي، هره ډله دې څو فعلونه په نښه کړي. بیا دې د یوې ډلې استازی په نښه کړي فعلونه پر تخته ولیکي، د بلې ډلې استازی دې هغه د اشخاصو له مخې په جملو کې وکاروي.

- په لاندې جملو کې د زمانې په لحاظ کوم فعلونه راغلي دي، په مقابل کې یې نوم په پنسل ولیکئ.
- زه پرون ښار ته تللی وم.
- زلمی لیک لیکي.
- زلمی به ډوډۍ وخوري.
- ما ډوډۍ خوړلې ده.
- ته به ښوونځي ته لاړ شې.

لاندې پوښتنو ته ځوابونه ووایئ:

۳ـ که چېرې په ویناکې فعل ونه کارول شي، څه ستونزه به پیښه شي؟

- د فعل له لوست څخه مو څه ګټه تر لاسه کړه؟
- لازمي او متعدي فعلونه څه توپیر لري؟

۴ـ د دې لوست کومه برخه مو خوښه شوه؟ خبرې پرې وکړئ.

۵ـ په لاندې جملو کې لا زمي او متعدي فعلونه په پنسل په نښه کړئ:

- محمود احمد ته وویل:

زه کور ته نه شم تللی، پلار ته مې ووایه چې مور ته مې درمل راوړي.

- زه چې کور ته تلم په لاره کې یوې ماشومې په چېغو چېغو ژړل. ما پوښتنه ترې وکړه چې ولې؟ هغې را ته وویل: پر لاره وغورځېدم.

۶ـ دا لاندې جملې د فعلونو په مخکې او وروسته کولو سره سمې کړئ او سمه بڼه یې په خپلو کتابچو کې ولیکئ:

- زه تللی وم ښوونځي ته.
- ما لیکلی و لیک په ښوونځي کې.
- ما خوړلې وه په کور کې ډوډۍ.

۷ـ دې لاندې پوښتنو ته ځواب ووایئ:

- فعل د زماني په لحاظ په څو ډوله دی؟ نومونه یې واخلئ.
- که چېرې په یوه جمله کې زمانه بدلون ومومي، په فعل کې څه بدلون راځي؟
- له متن څخه پنځه فعلونه وټاکئ او د هغو لپاره نوې جملې جوړې کړئ.

## کورنۍ دنده

څو داسې جملې دې ولیکي چې د اشخاصو او زمانې له مخې پکې فعل کارول شوی وي. په راتلونکي درسي ساعت کې دې د ټولګیوالو په وړاندې ووایي.

# کار او زیار



دا نړۍ پر کار ودانه ده او د انسان دکار، زیار او عمل یو پراخ ډګر دی. هغه څوک پکې په نیکمرغۍ او بریالیتوب ژوندکولی شي چې دکار د پیاوړی ځواک لري او په اغېزناکه توګه ترې ګټه اخلي.

■ که د یوې ټولنې وګړي کار ونه کړي او زیار ونه باسي، پخپله او ټولنه به له کومو ستونزو سره مخامخ شي؟

دانساني ژوند ارزښت په کار او زيار کې نغښتی دی . په دې خاورينه نړۍ کې چې وګړي د ژوندانه د وسيلو د تر لاسه کولو او برياليتوب لپاره هلې ځلې کوي، هغه څوك ښه پرمختيا کولی او درنښت موندلی شي چې دکار اوزيار په ځواك خپل شته والی وساتي اوپه دې وسيله ځان دزمانې له زيانونو څخه وژغوري . که څوك دخپل کار دسرته رسولو لپاره متې راونه نغاړي، کار او هڅه ونه کړي، ډير ژر به يې بدن بې ځواکه، اوکمزوری شي.

کار دبدن توان او ځواك زياتوي، روح پاك او پياوړی کوي.

په ژوندانه کې هغه څوك بريالی دی چې ځواکمن بدن لري. بې کاري تر ټولو ستره بلا ده. که يو څوك هر څومره بډای هم وي ، بايد له کار اوزيار څخه لاس وانه خلي، ځکه چې کار دژوندانه د هلو ځلو کارنده وسله ده اوبيکاري بدن بې ځواکه کوي . وګورئ که اوسپنيز ماشين هم دڅه مودې لپاره بيکاره پاتې شي، اوسپنې يې زنګ خوري اوکه هغه هرڅومره کلکې هم وي، دوخت په تېرېدو سره ماتيږي. که انسان هم خپل ژوند بيکاره تېروي، د وجود ماشين يې سست او ورو ورو له کاره لويږي. دغسې وګړي هيڅکله هم له ژوندانه څخه خوند نه شي اخيستلای.

دامو بايد په ياد وي چې يوازې په يو کار پسې مخه کول او هغه ترلاسه کول کافي نه دي، بلکې هر څوك چې کوم کار تر لاسه کوي، په دې هڅه کې دې وي چې په هغه کې ورځ په ورځ ځواکمن او ښه پرمخ لاړشي او نوې تجربې پکې تر لاسه کړي .

هغه څوك چې دپانګې اوپيسو دنشتوالي په پلمه په کار پسې نه ګرځي، ډېره لويه غلطي کوي. ځکه چې دهر چا رښتينې پانګه دهغه دبدن جوړښت، يعنې لاسونه، پښې، غوږونه، سترګې، عقلي، فکري او بدني ځواك دی چې ددغې خدایﷻ ورکړې پانګې په سمې کار اچونې سره انسان هر څه کولی شي.

وايي چې يو غريب ديو هوښيار سړي په وړاندې له خپلې غريبۍ او بې وزلۍ څخه شکايت وکړ. هوښيار ورته وويل: غواړې چې سترګې ونه لرې اودلس لکو افغانيو خاوند اوسې؟

غریب وویل: نه!

هوښیار سړي ورته وویل: ښه چې داسې ده، نو ته پخپله ډېره لویه پانګه لرې، دې ته نه یې چمتو چې له هغو څخه یوه د لس لکو افغانیو په بدل کې وپلورې، نوله غریبۍ او بېوزلۍ څخه ولې ګیله اوفریاد کوې؟ خپله همدغه پانګه دې په کار واچوه، باور لرو چې له دې بې وزلۍ او غریبۍ څخه به ډېر ژر خلاص شې.

کله چې له کاره ستړي شئ، دمه وکړئ، خو بیکاره مه ګرځئ. له کار نه مخ مه اړوئ، په زړه کې به مو خامخا دکاراو ژوند مینه راپورته شي.

کوم هوښیار سړي څه ښه ویلي دي: ((سهار دوخته چې چرګان نارې وهي، خلکو ته وایي چې: له خوبه پاڅېږئ، دکار پر لور وخوځېږئ.))

خو هغه کار چې کوو یې، باید یوازې خپله ګټه په پام کې ونه نیسو، بلکې باید داسې کار وکړو چې هم موږ او هم نورو خلکو ته ګټه ولري.

د متن لنډیز:

کار او زیار ستر ټولنیز ارزښت او اهمیت لري. که کار او زیار نه وای، د نړۍ دا دومره ودانۍ او پر مختګونه به هیڅکله نه وای تر سره شوي . هغو ټولنو او هېوادونو چې اغیزناک کار ونه کړي، پر مختللي دي او هغوی چې کار یې نه دی کړی، وروسته پاتې شوي دي . ویلای شو چې نیکمرغي او بریالیتوب په کار او زیار کې دي.

## فعالیتونه

۱ــ له څو زده کوونکو څخه دې وغوښتل شي چې د خپلې خوښې یو پارګراف د ټولګیوالو په وړاندې ولولي.

۲_ زده کوونکي دې له متن څخه څو فعلونه په خپلو کتابچو کې ولیکي او هغه دې په بېلا بېلو زمانو کې په جملو کې وکاروي.

۳_ داسې سیالي دې رامنځته شي چې یو زده کوونکی یو فعل پرتخته ولیکي او له بل څخه دې وغوښتل شي چې هغه په یوه مناسبه جمله کې وکاروي.

۴_ د لاندې جملو تش ځایونه دې په پنسل په مناسبو کلمو سره بشپړ کړي :

- زه هره ................ ښوونځي ته ځم.
- زما ورور په لسم ................ کې دی.

۵_ لاندې جملې له مخامخ لیکل شو و کلمو او عبارتونو څخه په پنسل بشپړې کړئ:

- زموږ هېواد ډېرې ........................ کې یم
- زه په نهم ټولګي ........................ کوي
- کار او زیار انسان نیکمرغه ........................ تاریخي ودانۍ لري

۶_ په دغه لوست کې مو د کار د اهمیت او ارزښت په هکله څه ولوستل؟ لنډې خبرې پرې وکړئ.

- ستاسې کوم کار او کسب خوښېږي او ولې؟
- د کار او کسب خاوندان ولې په ټولنه کې د درناوي وړ وي؟

۷_ د مفهوم له مخې د سم ځواب له شمېرې څخه په پنسل کرښه چاپېره کړئ :

الف: څوک چې ډېر کار کوي، اقتصادي یې کمزوری وي.

ب: څوک چې کار نه کوي، د ټولنې پر اوږو بار نه وي.

ج: څوک چې کار کوي، ژوند یې ښه او سوکاله وي.

## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د مشهورو کارونو او کسبونو یو لست په خپلو کتابچو کې ولیکي او د بلې ورځې په درسي ساعت کې دې یې ټولګیوالو ته ووایي.

# د اوښکو ارزاني



قیام الدین خادم د ملا حسام الدین زوی، په ۱۳۲۵ هـ . ق. کال د ننگرهار ولایت په کامه کې زېږېدلی و. پیاوړی عالم، کره کتونکی، لیکوال او شاعر و. تر پنځوسو زیات ځانګړي چاپ او ناچاپ اثار لري او په سلګونو مقالې یې د هېواد په مطبوعاتو کې خپرې شوې دي. د ۱۳۵۸ هـ .ش. د سنبلې پر شپږمه نېټه مړ دی.



■ اوښکې له سترګو ولې او په کوم حالت کې بهېږي؟

اوښکې د انسان عاطفي حالت څرګندوي. په عمومي ډول د یو سخت درد او زور خپګان په نتیجه کې تر سترګو رابهېږي چې د مقابل لوري له خوا یې باید په همدردۍ او خواخوږۍ سره ځواب وویل شي. په دې لوست کې د اوښکو د ارزښت او اهمیت په اړه د قیام الدین خادم لیکلی ادبي نثر لولئ.

که غله او ارتزاقیات قیمته شي، نو د فصل په راوتلو رفع کېږي. که کالي او لباس قیمته شي، نو بیا هم څه نا څه گوزاره کېږي.

خلک وایي: ((بربنډ له لارې اوړي، وږی نه اوړي.))

که فېشني شیان قیمته شي، نو قیمته دې شي کنه (( تجمل بېل شی دی او زنده گي بېل شی دی)) که اسعار قیمته شي، نو د یو دولت په تصمیم یې علاج ممکن دی چې غیر ضروري او دویمه او درېمه درجه شیونه له استعماله وغورځوي.

که دا ټول شیونه په یوه سویه ارزانه شي، د یو مملکت لپاره د رفاه او اسایش وسایل لاس ته راځي، اما اجتماعي سعادت او خوشبختي دغه وخت هم نه حاصلېږي. د ژوند سعادت او خوښي د ماد یاتو په زیا توالي او ډېروالي دومره اړه نه لري، لکه د ضمیر په ازادۍ او د روح په خوشحالۍ پورې . په ژوندکې خطرناک او مدهش حال دادی چې اوښکې ارزانه شي، وېره، دهشت او درد موجود وي او دوا نه وي.

په طب کې د هر درد، خوږ، پرهار او ټپ علاج شته، مگر نه د زړه د درد او زخم . د زړه د درد علاج په خپله د زړه درد دی او بس. د اوښکو د ارزانۍ علاج د پیسو د ارزانۍ غوندې نه دی چې د اقتصادکوم ماهر یې علاج وکولای شي او نه د کر نې متخصصان په دې کار پوهېږي.

بې دردي په یو قوم او جامعه کې داسې یو مرض دی چې په علاج یې فقط پیغمبران پوه شوي دي.

ای خدایه! موږ نه هغه زړونه واخله چې د مظلوم او بې وزلي له سترگو څخه په عبث تویېدونکو مرغلرو نه خوږېږي او هغه لاس، پښې او ژبه مه راکوه چې بې لاسو او بې پښو ته صدمه رسوي او خلک ژړوي.

((خیالي دنیا))

### د متن لنډيز:

په لوست کې په دې خبرې شوي چې اوښکې ځانګړی معنوي ارزښت او اهميت لري، هسې نه چې هغه بې قدره او بې ارزښته وګڼل شي او پامل‌رنه ورته ونشي. ټولنه بايد دومره بې رحمه او بې عاطفې نه وي چې د خلکو اوښکې چې د درد او خواشينۍ استازيتوب کوي، بې قدره وګڼي. خلک خواخوږۍ او همدردۍ ته ډېره اړتيا لري. موږ بايد بې درده او بې تفاوته نه يو، بايد يو د بل په درد دردمند شو او د غمجنو او ويرجنو د اوښکو د وچولو په فکر کې شو.

## فعاليتونه

۱ـ د ښوونکي له خوا د متن تر لوستلو او لازمو څرګندونو وروسته دې څو زده کوونکي متن په لوړ مناسب غږ د ټولګيوالو په وړاندې ولولي.

- څوتنه زده کوونکي دې د خپلې خوښې يو يو پراګراف له متن څخه ولولي.
- زده کوونکي په دوو ډلو وويشئ يوه ډله دې په متن کې مفردې کلمې پيدا کړي او بله ډله دې په متن کې جمع کلمې پيدا کړي، بيا دې له هرې ډلې څخه يو يو استازی ليکل شوې کلمې د خپلې ډلې په استازيتوب د ټولګي په مخ کې ټولګيوالو ته ووايي.

۲ـ په متن کې څو صفتونه پيدا او په مناسبو جملو کې يې وکاروئ.

- د متن دويم پراګراف په خپلو کتابچو کې وليکئ.

۳ـ ددې پوښتنو ځواب ووايئ:

- ولې له سترګو څخه اوښکې بهيږي؟
- اوښکې د څه شي استازيتوب کوي؟
- له بې وزلو او دردېدلو سره څه ډول مرسته کولی شو؟
- زده کوونکي په دوو ډلو وويشئ له هرې ډلې څخه دې يو استازی له مظلومو خلکو سره د مرستې په هکله خپلو ټولګيوالو ته خبرې وکړي.

۴ــ زده کوونکي دې دوه دوه سره جوړه شي، یو دې د کتاب یو پراګراف ووايي، بل دې هغه د املاء په توګه ولیکي. بیا دې هغه دواړه نوموړی پراګراف د کتاب له مخې سم کړي. بیا دې بل زده کوونکی هماغه شان یو بل پراګراف د املاء په توګه ووايي او د هغه جوړه ملګری دې یې ولیکي او په پای کې دې دواړه هماغه لیکل شوی پراګراف د کتاب له مخې سم کړي.

۵ــ یو یا دوه زده کوونکي دې پخپله خوښه د یتیم یا بل درد یدلي انسان حالت تمثیل کړي. بل زده کوونکی دې له هغه سره دخواخوږۍ او د مرستې دلارو چارو په برخه کې خبرې وکړي. یا دې د خواخوږۍ نقش ترسره کړي.

۶ــ زده کوونکي دې یو یو پورته شي او د درس په مفهوم دې خبرې وکړي .

◆ څو زده کوونکي دې د ټولګیوالو په وړاندې د هغې مرستې په هکله خبرې وکړي چې کله یې له چا سره کړې وي.

۷ــ لاندې جملې په خپله خوښه په پنسل بشپړې کړئ :

◆ ما پرون د یو یتیم ماشوم .................... پاکې .................... .

◆ له بیوزلو او ځوریدلو وګړو سره ...................... پکار ده .

۸ــ زده کوونکي په دوو ډلو وویشئ، د "الف" ډله دې لاندې جملې ته انکشاف ورکړي: موږ باید د یو دردېدلي انسان اوښکې وچې کړو.........

د ب ډله دې لاندې جملې ته انکشاف ورکړي:

شتمنو ته لازمه ده چې له بې وزلو سره مادي او معنوي مرستې وکړي.......

## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې له دردمنو او ځوریدلو وګړو سره د مرستې او خواخوږۍ په اړه یوه کیسه ډوله لیکنه وکړي. بله ورځ دې هغه په درسي ساعت کې د ټولګیوالو په وړاندې ولولي.

اتم لوست

# ملي ارشیف




- تاسې د دې پورته ودانۍ په هکله څه معلومات لرئ؟
- لرغوني لیکلي او چاپي اثار ولې، چېرې او د څه لپاره ساتل کېږي؟

د لرغونو په لاس کښلو او چاپي کتابونو، د واکمنانو د فرمانونو، لیکونو او تاریخي سندونو د ساتنې لپاره باید داسې یو ځانګړی ځای وي چې هغه پکې د یو ارزښتمن فرهنګي میراث په توګه خوندي وساتل شي. دغه د خوندي ساتنې ځای ته ارشیف وایي. موږ هم په خپل هېواد کې دغسې یوه ځانګړې اداره لرو چې ((ملي ارشیف)) نومېږي، دلته یې درپېژنو.

د نړۍ په هر هېواد کې داسې ودانۍ ځانګړې شوي وي چې په هغو کې د واکمنانو فرمانونه، لاس کښلي (خطي) او چاپي کتابونه، تاريخي رسمي او ځانګړي سندونه، ليکونه، د انځورګرۍ پاڼې او نور خوندي ساتل کېږي. دغې ودانۍ يا اداري ته ارشيف ويل کېږي.

زموږ په هېواد کې له ځو لسيزو راهيسې دغه ډول يوه ودانۍ شته چې ملي ارشيف يې بولي.

د ملي ارشيف اوسنۍ ودانۍ چې د کابل ښار په سالنګ واټ کې واقع ده، د امير عبدالرحمٰن خان د واکمنۍ د زمانې ده. نوموړي امير هغه د خپل زوی شهزاده حبيب الله خان د کار لپاره جوړه کړې وه. دا ودانۍ چې دوه پوړه ده، لومړی پوړ يې تر ځمکې لاندې دوه سالونونه او لس خونې لري، د محمد داؤد خان د جمهوريت په لومړيو (۱۳۵۲ هـ.ش.) کې د ملي ارشيف لپاره ځانګړې شوه او د عامه کتابتون تر اداري لاندې يې فعاليت پيل کړ، خو ملي ارشيف په رسمي توګه د اطلاعاتو او فرهنګ د وزارت د يوې ځانګړې فرهنګي اداري په توګه په ۱۳۵۹ هـ. ش. کال پرانيستل شو.

د دغې اداري د فعاليت له هماغه لومړيو څخه د تاريخي سندونو، ليکونو، د کتابونو د خطي او چاپي نسخو او نورو هنري انځوريزو اثارو پېروډل او راټولول پيل شول. په لومړي ګام کې هغه ليکلي او چاپي تاريخي او هنري اثار چې د کابل په عامه کتابتون او نورو دولتي ادارو کې موجود وو، په ملي ارشيف کې ځای پر ځای شول او بيا د هغې لپاره د هېواد له ګوټ ګوټ څخه اړوند اثار راوړل شول چې دا لړۍ تر ننه هم روانه ده او له يوې ورځې څخه يې بلې ته د اثارو شمېره زياتېږي.

اوس زموږ په ملي ارشيف کې ډېر ارزښتناک اثار خوندي دي. ټول هغه اثار چې اوس زموږ په ملي ارشيف کې خوندي دي، د اسلامي دورې له پيلامې څخه په راوروسته پېړيو پورې اړه لري. تر ټولو لرغونې لاس کښلی (خطي) نسخه چې په ملي ارشيف کې خوندي ده، هغه د قرآن کريم پنځه پارې دي چې د هوسۍ پر پوستکي ليکل شوي او ليک يې د حضرت عثمان وخت ته منسوب ګڼل شوی دی. بل لرغونی سند د تيموري

دورې د نومیالي واکمن سلطان حسین بایقرا فرمان دی چې په (۹۰۱ هـ . ق .) کال په نستعلیق لیک لیکل شوی، اوس په ملي ارشیف کې خوندي دی.

زموږ په ملي ارشیف کې اوس د کتابونو په زرګونو خطي او چاپي نسخې، تاریخي سندونه او انځوریز لاس کښلي کتابونه او پاڼې خوندي دي. په دغو لاس کښلو نسخو کې یوه هم د پښتو ډېر ارزښتناک ادبي کتاب ((پټه خزانه)) نومیږي چې د هغې په تر لاسه کېدو سره پښتو لیکلی ادب د دویمې هجري پیړۍ نیمایي ته رسیږي.

دافغانستان ملي ارشیف له ډېرو زیاتو لرغونو او تاریخي چاپي او لاس کښلو سندونو او اثارو سره له ستر ملي او نړیوال ارزښت څخه برخمن دی او د ((سواربیکا))(*) یا د ارشیفونو د نړیوالې مؤسسې د غړیتوب ویاړ یې هم تر لاسه کړی دی.

د تاریخي، علمي، ادبي او نورو اثارو د خوندي ساتنې اداري (ملي ارشیف) دبډای کولو لپاره باید هر اړخیزې هلې ځلې وکړو او یوه ملي دنده یې وبولو.

د متن لنډیز:

ملي ارشیف زموږ په هېواد کې د لرغونو لاس کښلو او چاپي اثارو، تاریخي سندونو او لیکونو د خوندي ساتنې ځانګړې اداره ده چې له تاسیس کیدو یې څو لسیزې تیریږي او اوس د زرګونو خطي او چاپي کتابونو، سندونو او نورو اثارو په لرلو سره له ملي او نړیوال اعتبار څخه برخمنه ده.

## څرګندونه

- سواربیکا: د ارشیفونو یو نړیوال تنظیم یا مؤسسه ده چې د ډېرو هېوادونو ملي ارشیفونه یې غړیتوب لري.

## فعالیتونه

۱ــ څو زده کوونکي دې دا لاندې معلوماتي جملې د خپل ټولګي په وړاندې په لوړ غږ ولولي:

- په ملي ارشيف کې تاريخي ليکلي اثار له خرابېدو او ورکېدو څخه خوندي ساتل کېږي.
- د ملي ارشيف اوسنۍ ودانۍ د امير عبدالرحمٰن خان د واکمنۍ په کلونو کې نوموړي امير د خپل زوی حبيب الله خان د کار لپاره جوړه کړې وه.
- ملي ارشيف د داود خان د جمهوريت په لومړيو (۱۳۵۲ هـ. ش.) کال کې د عامه کتابتون تر اداري لاندې رامنځته شو.

۲ــ زده کوونکي دې په کتارونو وويشل شي. يو کتار دې په متن کې د پښتو (ی) ګانې په نښه کړي، دويم کتار دې ضميرونه او دريم کتار دې فعلونه په نښه او پخپلو کتابچو کې وليکي. له هر کتار څخه دې يو تن هغه د نورو په استازيتوب پر تخته وليکي.

۳ــ دې لاندې پوښتنو ته ځوابونه ووایاست:

- ملي ارشيف څه ارزښت او اهميت لري؟
- په متن کې د کومو شخصيتونو نومونه ياد شوي دي؟
- د ملي ارشيف د لا بډاينې لپاره څه کولی شو؟

## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې پخپل کور و کلي کې د پخوانيو قلمي (لاس کښلو) کتابونو او نورو پخوانيو سندونو د شته والي او د هغو د ساتنې د څرنګوالي په اړه معلومات راغونډ او هغه دې په بل پښتو درسي ساعت کې د خپلو ټولګيوالو په وړاندې ووايي.

# عادل واکمن



- تاسو د عدالت په باب کومه کیسه اورېدلې ده؟

عدل او انصاف له ډېرو سترو او غوره اسلامي، ټولنیزو او بشري ځانګړنو څخه ګڼل کېږي، موږ ته پکار دي چې په هېڅ حالت کې د عدالت تله له لاسه ونه غورځوو.

دلته مو په دې لوست کې د نوشیروان عادل د عدالت یوه بېلګه د کیسې په بڼه تاسې ته خوښه کړې ده. دا کیسه مولوي احمد لیکلې او په (ګنج پښتو) کتاب کې خوندي ده.

زورور ته نه ښايي چې په کمزوري باندې خپل زور وازمايي، که څه هم کار يې خرابيږي. وايي چې د روم پاچا، نوشېروان پاچا ته استازی ليږلی و، کله چې هغه دربار ته ورسېد، گوري چې يوه لويه مانۍ ده، پاچا پکې په تخت ناست دی او نور اميران او وزيران په څوکېو ناست دي. استازي چې شاو خوا وکتل، په دغې مانۍ کې يو ځای ورته کوږ ښکاره شو. له يو سړي څخه يې پوښتنه وکړه چې دا ځای ولې کوږ دی؟ هغه ورته وويل چې دا د يوې بوډۍ کور و. په هغه وخت کې چې پاچا دا مانۍ جوړوله، نو هغې بوډۍ ته يې وويل چې دا کور په ما خرڅ کړه، مگر د هغې رضا اوخوښه نه وه، پاچا په زور سره داکارونه کړ، نو ځکه دا ځای په دې مانۍ کې کوږ پاتې شوی دی. استازي وويل چې رښتيا خبره دا ده چې داکوږوالی ډېر ښه دی، له هغه سموالي نه چې په ظلم تر سره شوی وي، حق او انصاف دا دی چې داکار نه په پخوا زمانه کې چا ويلی دی او نه مې وروسته گومان کېږي چې کوم پاچا به داکار وکړي.

پاچا چې د قاصد دا خبرې واورېدلې، ډېر خوشحاله شو، انعام او ډالۍ يې ورته ورکړه او په ډېر عزت سره يې رخصت کړ.

د متن لنډيز:

په کيسه کې د نوميالي عادل واکمن نوشيروان د عدالت يوه پيښه بيان شوې چې نوموړي څنگه د خپلې مانۍ د جوړولو پر مهال د زور زياتي پر ځای له عدالت او انصاف څخه کار اخيستی دی. د خپلې مانۍ يوه برخه يې کږه پرېښې، خو ديوې خوارې او بېوزلې ښځې حق يې په زور نه دی لاندې کړی.

مولوي احمد د پښتونخوا د هشتنغر د تنګي اوسيدونکی، د پښتو د معاصر، ساده او روان نثر له بنسټ ايښودونکو څخه ګڼل کېږي . ځيني ليکلي کتابونه ترې راپاتې دي . په هغو کې يو ډېر مشهور اثر يې ((ګنج پښتو)) دی چې لومړی ځل په ۱۸۷۲ م. کال کې چاپ شوی دی.مولوي احمد په ۱۳۰۰ هـ . ق . کال مړ دی.

## فعاليتونه

۱ـ څو تنه زده کوونکي دې دغه کيسه د ټولګي په وړاندې په لوړ غږ ولولي.

۲ـ که د زده کوونکو له ډلې څخه د عدالت په اړه د چا کومه بله کيسه زده وي، پخپله خوښه دې هغه د ټولګي په وړاندې ووايي.

۳ـ دا لاندې لغتونه د خپلمنځي نږدېوالي له مخې په بېل بېل کتار کې په پنسل وليکئ:

احمد، توتکی، کتاب، زلمی، کوتره، قلم، نوشيروان، کتابچه، توتي.

احمد .........................................

...............................................

...............................................

- لاندې جملې په پنسل په مناسبو کلمو بشپړې کړئ:
- نوشيروان يو ډېر .................... و.
- د روم د پاچا استازي له .................... څخه د مانۍ د کوږوالي په اړه پوښتنه وکړه.
- پاچا چې د قاصد خبرې واورېدې ................شو او .................... يې ورته ورکړ.

۴_ لاندې پوښتنې ځواب کړئ :

- د نوشیروان د ودانۍ یوه برخه ولې کږه جوړه شوې وه؟
- د روم د پاچا استازی چې د ماڼۍ د کوږوالي په علت پوه شو، څه یې وویل؟

۵- لاندې مفردې کلمې په خپلو کتابچو کې په جمع او جمع په مفرد واړوئ او په مناسبو جملو کې یې استعمال کړئ :

| مفرد | جمع |
|---|---|
| سړی | هلکان |
| گل | قلمونه |
| لوست | میزونه |
| کور | نجونې |

## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د کیسو ځینې کتابونه مطالعه کړي او له هغو څخه دې د عدالت او انصاف په باب یوه یوه کیسه په خپلو الفاظو په لنډون سره ولیکي. که یې پخوا هم داسې کومه کیسه مطالعه کړې یا اورېدلې وي هغه دې په څو جملو کې ولیکي. په بل پښتو درسي ساعت کې دې یې ټولګیوالو ته ووايي.

> په خلکو کې ډېر عادل هغه څوک دی چې هغه څه چې ځانته خوښوي، بل ته یې هم خوښوي.
>
> (حدیث شریف)

# عبدالرؤف بېنوا



■ تاسي د هېواد له اوسنيو نوميالیو ليکوالو او شاعرانو څخه د چا نومونه اورېدلي او د هغو کتابونه مو لوستي دي؟

د پښتو ادب په معاصره دوره کې ځو ډېرې نوميالی او مخکښې ادبي څېرې لرو چې هغوی د پښتو ژبې او ادب د ودې او پرمختيا په لاره کې د ستاينې وړ خدمتونه او نه هېرېدونکې هلې ځلې کړي دي. له دغو نومياليو ادبي څېرو څخه يو يې عبدالرؤف بېنوا دی چې په دې لوست کې يې درپېژنو.

عبدالرؤف بېنوا د مفتي عبدالله زوی، په ۱۲۹۳ هـ . ش . کال په کندهار کې زېږېدلی و. لومړنۍ زده کړې يې د کورنۍ او سيمې له ديني عالمانو څخه وکړې او بيا يې د خپل ځانګړي ذوق او علاقې له مخې د ديني او ادبي علومو او فنونو مطالعې ته دوام ورکړ. د ځوانۍ په لومړيو کې يې په شعر ويلو او ليکوالۍ پيل وکړ، ډېر ژر يې د خپل پياوړي استعداد له مخې په دغه ډګر کې د پرمختګ پړاوونه ووهل او د شاعر او ليکوال په توګه وپېژندل شو.

په ۱۳۱۷ هـ . ش . کال د هېواد پلازمينې (کابل) ته راغی او د وخت د ډېرې مشهورې علمي او فرهنګي ادارې ((پښتو ټولنې)) غړی شو. بيا وروسته د کابل مجلې مدير شو. څو کاله يې دغه دنده په ډېر برياليتوب سره تر سره کړه، بيا د پښتو ټولنې مرستيال او څه موده وروسته د پښتو ټولنې لوی مدير شو. په همدغو وختونو کې څه وخت د هېواد ورځپاڼې مسؤول چلوونکی هم و. په ۱۳۳۵ هـ . ش . کال د کابل راډيو د رياست چارې وروسپارل شوې. څو کاله وروسته په مصر کې د افغانستان د سفارت مطبوعاتي استازی او بيا د دويم ځل لپاره د کابل راډيو رئيس شو. ورپسې د ولسي جرګې وکيل او په ۱۳۴۶ هـ . ش . د اطلاعاتو او کلتور وزير شو.

وروستۍ رسمي دنده يې په ليبيا کې د افغانستان د سفير په توګه وه چې له هغه ځايه امريکا ته جلا وطن شو. د سرطان د ورپيښې ناروغۍ له امله په ۱۳۶۳ هـ . ش . کال په نيويارک کې مړ او هلته خاورو ته وسپارل شو.

د قبر پر شناخته يې خپل دا شعر د وصيت په توګه ليکل شوی دی:

زما هډونه به در وړئ وخپل وطن ته
مړ بلبل به رسوئ و خپل ګلشن ته
ښخوئ به ما په پاک افغانستان کې
د پرديسو ننګياليو په جهان کې
زما پر شناخته به ليکئ زلميو دا:
((دلته ښخ دی پرديس شوی بېنوا))

عبدالرؤف بېنوا پياوړی ليکوال، شاعر، مؤرخ او هېوادپال سياستوال و. د شعر او ادب، سياست او تاريخ په بېلا بېلو برخو کې يې ليکل کړي دي. په سلګونو مقالې او شعرونه يې د هېواد په مطبوعاتو کې خپاره شوي او په لس ګونو علمي، ادبي، تاريخي او سياسي اثار يې د ځانګړو کتابونو په بڼه چاپ شوي دي. په خپلې مورنۍ ژبې پښتو سربېره په عربي، اردو او انګليسي ژبو ښه پوهېده او په دغو ژبو کې يې ليکنې او ژباړې هم کړي دي.

د چاپ او ناچاپ کتابونو شمېر يې له ۵۰ څخه زيات دی. دلته يې د ځينو اثارو نومونه اخلو : اوسنی ليکوال (۱_ ۲_ ۳ ټوکه)، د افغانستان نوميالي (۱_ ۲_ ۳_ ۴_ ټوکه) ميرويس نيکه، پريشانه افکار (د شعرونو ټولګه)، د شعرونو کليات، زوړ ګناهکار (د ډرامو ټولګه) د افغانستان تاريخي پېښې، د زړه خواله (ادبي ليکونه) او نور.

يو شعر يې د بېلګې په توګه راوړو:

### د غريب پالنه

چې وړوکي سره مورکه
ياله وروره سره وررکه
داسې کړه له غريبانو
هر غريب پر اوږه سورکه
هوښياري شرافت نه دی
چې له وړکو سره زورکه
له انصاف له عدله ليرې
چې د کونډو سر سر تورکه
د هغو زړګی به خور شي
د يتيم زړګی چې خورکه
د خپل قام رنځور په شاکه
تاته کوم هوښيار پيغورکه

چې دانه کوي بې نومه
پرې گومان دغله او چور که

د عبدالرؤف بینوا لنډه ادبي ټوټه:

گرانه ملگریه!

یو گل چې څومره ډېر رنگونه ولري ښکلا یې هم هومره زیاته وي او چې څومره مخونه ولري هغومره د ستاینې وړ وي، خو یو انسان که دوه رنگه شو یا یې ځان دوه مخی وښوده نو نور یې مخ د کتو نه وي.

پوهان وايي: ((څنگه چې یې، هغسې ځان ښیه او څنگه چې ځان ښیې هغسې اوسه.))

خو ځینې انسانان شته چې نه یوازې څو رنگه، څو بڼې او څو مخه لري، بلکې ورسره څو ژبې یې هم په خوله کې وي. او د ماهرو ایکټرانو په څېر د خپل هر رنگ او هر مخ د ښودلو لپاره مخصوصې صحنې لټوي او د خپلې هرې ژبې لپاره ځانته موقع گوري.

داسې انسانان د نورو په رنگ رنگېدل نه غواړي، خو د ځان د رنگ په بدلولو کې دومره ماهر وي چې نور په خپل رنگ ژر غولولی شي. د مخونو په پېژندلو کې لاس لري، خو د دوی د مخ ښه پېژندل د مصنوعي سپوږمۍ په اصلي ماهیت پوهېدلو غوندې وي. دوی په خپله ژبه پسې نه گرځي، خو خپله ژبه د هر چا او هر ځای د اقتضا سره سمه گرځوي. دوی د هر مجلس د رنگ سره خپل رنگ بدلولی شي او د هر چا د خوب رگ یې ځانته معلوم کړی وي. دوی په همدغه یوه ژبه غله ته وايي غلا کوه او د کور خاوند ته وايي: کور ساته.

ظالم ته د ظلم لاره ښيي او مظلوم ته د انتقام اخیستلو سترگکونه وهي.

حاکم ته محکومین وي او محکومینو ته د حاکمانو په رنگ کې وړاندې کېږي. او که ورته ځیر شو همدا دوه مخي، دوه رنگي کسان دي چې د ټولنې د طبقاتو ترمنځ د دې پر عوض چې وحدت، یو والی او ښه نیت پیدا کړي، د هغوی په منځ کې د بدبینۍ، بدگمانۍ

او بدنيتې تورې پردې اچوي، که د حاکمې او محکومې طبقې ترمنځ واقع شي، دواړو خواوو ته داسې څرګندوي چې همدا دوی دي چې ددې دوو طبقو ترمنځ يې ارامي ساتلې ده، که دوی نه وي د هغوی ارامي به هم ويجاړه شي. حال دا چې که دا دوه مخي او دوه رنګي له منځه لرې شي، د طبقاتو ترمنځ مستقيمه رابطه او مفاهمه ډېر ژر د دوی منځ ته صميميت او يو رنګي راوستلای شي.

نو ګرانه ملګريه!

که غواړو چې د ښه او نيکمرغه ژوند سره مخامخ شو، لازمه ده چې د دې دوه رنګی، دوه مخی او دوه ژبی څخه لومړی ځانونه وژغورو او بيا يې په ټينګه د مخنيوي لپاره زيار وباسو.

هر چا ته او په هر مجلس کې چې ښه يو، هغسې ځانونه وښيو او چې څنګه ځانونه ښيو هغسې واوسو او دا مو ډاډ وي چې يوه ورځ نه يوه ورځ به ضرور د دوه مخو مخونه تور او د دوه رنګو رنګونه ورک او د دوه ژبو ژبې وچې شي، ځکه چې ((کوږ بار تر منزله نه رسيږي.)) او ((دوې هندوانې په يوه لاس کې اخيستی کېدای نه شي.))

د متن لنډيز:

عبدالرؤف بېنوا د پښتو ژبې پياوړی ليکوال ، شاعر ، مؤرخ او هېواد پال سياستوال و. د خپل ژوند څو لسيزې يې د هېواد په علمي او فرهنګي ادارو کې خدمت کړی ، په لس ګونو ځانګړي کتابونه او په سلګونو مقالې يې چاپ او خپرې شوي دي.

عبدالرؤف بېنوا د پښتو په معاصرو شاعرانو او ليکوالو کې د لوړ ادبي مقام او دريځ څښتن دی.

## فعالیتونه

۱_ څو زده کوونکي دې په خپله خوښه د متن یو یو پارګراف په وار سره ولولي.

۲_ د متن په پای کې مو د بینوا له شعر څخه څه مفهوم واخیست؟ په خپلو کتابچو کې یې ولیکئ او هغه د ټولګي په وړاندې ولولئ.

۳_ زده کوونکي دې متن په غور ولولي او په هغو کې دې صفتونه پیدا او په مناسبو جملو کې وکاروي.

۴_ په متن کې مو ولوستل چې عبدالرؤف بینوا نومیالی لیکوال، شاعر، مؤرخ او هېواد پال سیاستوال و. ستاسې د نوموړي کوم اړخ ډېر خوښېږي خبرې پرې وکړئ؟

- لیکوال په ټولنه کې څه ارزښت لري؟

۵_ دا لاندې نیمګړې جملې په پنسل په مناسبو کلمو سره بشپړې کړئ :

- عبدالرؤف بینوا د پښتو ژبې یو نومیالی ............................ و.
- عبدالرؤف بینوا په ...................... کې مړ.
- عبدالرؤف بینوا له ............................ زیات چاپ او ناچاپ کتابونه لري.

۶_ ځینې زده کوونکي دې د ټولګي مخې ته راوبلل شي چې د بینوا د نثر (ګرانه ملګریه!) مفهوم په خپلو الفاظو کې ټولګیوالو ته بیان کړي.

## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د خپل کور و کلي یا سیمې او ښار د کوم شاعر لنډ ژوند لیک او د شعر یوه بېلګه ولیکي. په راتلونکي پښتو درسي ساعت کې دې یې ټولګیوالو ته ولولي.

# د ځنګلونو ارزښت



- تاسې له ځنګلونو سره اشنا یاست ؟
- ځنګلونه څه ګټې لري ؟

ځنګلونه سربېره پر دې چې دسون، دکورونو د پوښلو او دکړکیو او دروازو د جوړولو لپاره د اړتیا وړ لرګي برابروي او همداراز د هوا په پاکوالي، د ښکلي چاپېریال او طبیعي منظرو په رامنځته کولو کې هم ستر ارزښت او اهمیت لري.
دلته په دې لوست کې د ځنګلونو په ګټو او ارزښتونو خبرې کوو.

افغانستان یو غرنی هېواد دی چې زیاته برخه یې غرونو نیولې ده. له دغو غرونو څخه ځینې یې په ګڼو ونو او بوټو پوښلي دي چې هغو ته طبیعي ځنګلونه وایي.

له دغو ځنګلونو څخه که له یوې خوا د ودانیو د پوښلو، کړکیو، دروازو او نورو ضروري شیانو د جوړولو لرګي برابروي، له بلې خوا یې له لرګیو څخه د سون د توکو په توګه هم کار اخلي.

د ډول ډول مېوو او کورنیو ښارویو د روزنې لپاره ځنګلونه وړ چاپېریال جوړوي. د وحشي حیواناتو او ډول ډول الوتونکو د استوګنې لپاره یو ډېر مناسب ځای ګڼل کېږي. ځنګلونو ډېرې ښکلې او په زړه پورې طبیعي منظرې هم جوړې کړې دي. باید ووایو چې د ډېرو لوړو او ټیټو غرونو دشته والي په اندول زموږ د هېواد د ځنګلونو شمېره او سیمې ډېرې نه دي. د هېواد په مرکزي او شمالي برخو کې د هندوکش د لوړو غرونو لړۍ دي چې تل په واورو پټې وي او د ځنګلونو د رامنځته کېدو لپاره وړتیا نه لري. بیا هم کوم ځنګلونه چې همدا اوس زموږ په هېواد کې شته، که یې په سمه توګه ساتنه، څارنه او پالنه وشي او د یوې ملي شتمنۍ په توګه ورڅخه مناسبه ګټه واخیستل شي، تر ډېره زموږ د خلکو اړتیاوې پوره کولای شي او د ملي اقتصاد په پیاوړتیا کې ډېره ارزښتناکه ونډه ترسره کولای شي.

زموږ د هېواد د ځمکې ټوله دوه میلیونه هکتاره شاوخوا ساحه ځنګلونو پوښلې ده. دغه ځنګلونه په ټول هېواد کې یو شان نه دي. د بېلګې په توګه د پکتیا، کونړ او بادغیس په ولایتونو کې دغه کچه لوړه ده، خو په مرکزي او جنوب لویدیځو سیمو کې بیا هیڅ ځنګل نشته.

د کونړ او پکتیا په ځنګلونو کې د نښتر، څېړۍ او ښوون ډېرې ونې شته چې ډېر اقتصادي ارزښت لري. د بادغیس په ځنګلونو کې د پستې ځنګلونه شته دي چې د پستې خوندوره مېوه ترې لاس ته راځي. په ننګرهار، لغمان، نورستان او نورو سیمو کې هم ځنګلونه شته دي.

که ځنګلونه له یوې خوا ستر اقتصادي ارزښت لري، نو له بلې خوا د چاپېریال او هوا

په پاک ساتلو او د سيلابونو په وسيله د پېښېدونکو زيانونو د مخنيوي لپاره هم ډېر مهم دي. موږ ته لازمه ده چې د يوې ارزښتناکې ملي شتنمۍ په توګه يې د ساتنې او څارنې لپاره هلې ځلې وکړو. پر طبيعي ځنګلونو سربېره د هېواد په زياترو سيمو کې مصنوعي ځنګلونه وکرو او ويې روزو چې د استوګنې چاپېريال مو ښکلی، هوا يې تازه او په زړه پورې شي.

د متن لنډيز:

زموږ هېواد غرنی دی، له همدې امله په ځينو سيمو کې ډېر ګڼ او پراخ ځنګلونه لري. دغه ځنګلونه په اقتصادي او سوداګريز ارزښت سربېره د هوا په پاکوالي او د ښکلو طبيعي منظرو په رامنځته کولو کې د ستاينې وړ ونډه لري. ځنګلونه د سيلابونو مخنيوی کوي او موږ له طبيعي مصيبتونو څخه هم تر يوه حده ساتي. د ملي شتمنۍ په توګه يې بايد ساتنه او څارنه وشي.

## فعاليتونه

۱ــ زده کوونکي دې متن په چوپتيا سره ولولي، بيا دې نور زده کوونکي د متن يو يو پاراګراف په لوړ غږ د نورو ټولګيوالو په وړاندې ولولي.

۲ــ زده کوونکي دې په خپلو کتابچو کې د کتاب له متن څخه د ځنګلونو ګټې وليکي او بيا دې په وار سره د ټولګيوالو په وړاندې ولولي.

۳ــ يو يو زده کوونکی دې د ټولګي مخې ته را وغوښتل شي چې په لنډه توګه د هېواد د بېلا بېلو ځنګلونو سيمې وښيي او د ځنګلونو د اهميت په هکله خبرې وکړي.

 

- پورته عکسونو ته وګورئ او د ځانګړنو په هکله يې څو کرښې په خپلو کتابچو کې وليکئ.

۴ـ دې لاندې پوښتنو ته ځوابونه ووايئ:

- ځنګلونه څه ته وايي؟
- ځنګلونه د چا مال بلل کېږي؟
- تاسې د هېواد د ځوانانو په توګه د ځنګلو د ساتنې او څارنې لپاره څه وړانديزونه لرئ.

۵ـ دا لاندې جملې ولولئ چې په کومې زمانې (اوس مهال ـ تېر مهال او راتلونکي مهال) پورې اړه لري، په چوکاټ کې يې په پنسل وليکئ:

۱ـ زه پروسږکال د کونړ ځنګلونو ته تللی وم.

۲ـ زه ځنګل ته ځم.

۳ـ زه به له خپل ورور سره د پکتيا د ځنګلونو ليدلو ته لاړ شم.

## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د ځنګلي ونو او د دوی په سيمو کې د موجودو ونو نومونه ليست کړي د پښتو ژبې په بل درسي ساعت کې دې هغه ټولګيوالو ته ووايي.

# لوبې او روغتیا



- تاسې له کوم ډول لوبو سره مینه لرئ ؟
- لوبې څه ګټه لري؟

موږ په ټولنه او هېوادکې په سیمه ییزه، ملي او نړیواله کچه یو شمېر لوبې او ورزشونه لرو چې ډېر مینه وال لري. دغه لوبې نه یوازې دا چې غوره بوختیاوې دي، ډېرې روغتیايي ګټې هم لري. دلته په دې لوست کې پر هغو خبرې کوو.

لوبې یوازې بوختیا او وخت تیرول نه دي، بلکې د ځوانانو لپاره ډېرې نورې ګټې هم لري. د ځوانانو پټ استعدادونه راڅرګندوي او هغوی ځیرک، کوښښي، کارکوونکي، وخت پیژندونکي، زغموونکي او ژمن روزي.

لوبې سربېره پر یوې غوره بوختیا او پورته یادو شوو ښېګڼو، د بدن د روغتیا او سلامتیا لپاره هم ډېرې ګټې لري. د هغو په ارزښت او اهمیت باید موږ پوه شو. پخوا به زیا تره چارې او کسبونه، لکه : ترکاڼي، اهنګري، یوې کول، لو کول او د کرنې نورې چارې د انسان د بدن او متو په زور او ځواک سرته رسیدلې.

تر ډېرو لیرې لیرې وا ټنونو به خلک پلي تلل، که څه هم دغه کارونه به د اړتیا له مخې تر سره کېدل، خو هغه په حقیقت کې یو ډول سپورت هم و.

اوس د عصري پرمختګونو له امله د ژوندپه ټولو چارو کې ډېرې اسانتیاوې رامنځته شوي دي. د کارونو لپاره لوی او واړه ماشینونه او د تګ را تګ لپاره ډول ډول وسیلې جوړې شوي دي، ځکه د انسان د بدني کار ډګر لږ او ډېر تنګ شوی دی. داچې د انسان د بدن غړي داسې ځانګړتیا لري چې که کار ترې وانه خیستل شي، سستیږي او که کار ترې واخیستل شي، ډېره ښه وده کوي او پیاوړي کېږي.

هغه بېلا بېلې سیمه ییزې، ملي او نړیوالې لوبې، لکه: والیبال، فوټبال، ټینیس، باسکټبال، کرکټ، هاکي، ځغاسته یا منډې وهل، لامبو وهل، وزن پورته کول، غېږه نیول (پهلواني) وزلوبه، جمناستیک او همدارنګه د ماشومانو ځینې سیمه ییزې لوبې، لکه: پټ پټونی، رسۍ لوبه، پنډوس، چندرۍ، د واورو جنګ او داسې نور چې په ځانګړې یا ډله ییزه بڼه ترسره کېږي، لوبې ورته وایي.

لوبې ډېرې جسمي او روحي روغتیایي ګټې لري . د لوبو کولو پر وخت د بدن غړي په حرکت راځي. بدن خوله کېږي او له هغو سره ډېر زهرجن مواد بهر ته وځي. د لوبو په بهیر کې ساه ایستل ګړندۍ کېږي، بدن نوې او تازه هوا اخلي. روحي ستړیا له منځه ځي، زړه او بدن غښتلی کېږي. لوبې او ورزشونه د ځوانانو ترمنځ صمیمیت زیاتوي او ان تردې چې د ملتونو ترمنځ سیالۍ په لوبو کې د دوستۍ او سولې فضا رامنځته کوي.

د لوبو او ورزش یوه بله ډېره مهمه ګټه دا ده چې د انسان بدني استعدادونه او مهارتونه وده کوي، ذهني، اخلاقي او ټولنیزې ځانګړنې یې پالنه او روزنه مومي.

د ډله ییزو لوبو له امله د لوبغاړو په خپلو کې د همکارۍ او یو پر بل د باور او ملګرتیا روحیه پیاوړې کېږي.

تاسې باید د زده کړې د چارو ترڅنګ لوبو او ورزش ته هم مناسب وخت ورکړئ، په ځانګړو ډله ییزو لوبو او ورزشونو کې برخه واخلئ چې بدن مو روغ رمټ او د هر ډول جسمي او روحي کارونو سرته رسولو ته چمتو شي.

د متن لنډیز:

لوبې بوختیا او وخت تېرول نه دي، بلکې ډېرې نورې روغتیایي او ټولنیزې ګټې هم لري. اوس د فزیکي کار او فعالیت ډګر لږ او ډېر تنګ شوی او ډېر کارونه د ماشین په وسیله تر سره کېږي. د انسان بدن داسې ځانګړنه لري چې که کار ترې وانه خیستل شي، سستېږي. که کار ترې واخیستل شي، نو ډېره پیاوړتیا مومي. ددې لپاره د بېلا بېلو لوبو تر سره کول ډېر ضروري دي.

## فعالیتونه

۱ـ زده کوونکي دې لومړی متن په چوپتیا سر ولولي، بیا دې ځینې زده کوونکي متن په لوړ غږ د ټولګیوالو په وړاندې ولولي.

۲ـ زده کوونکي دې په دریو برابرو ډلو وویشل شي : یوه ډله دې د لویانو سیمه ییزې لوبې، دویمه ډله دې په ملي کچه منل شوې نړیوالې لوبې او دریمه ډله دې د ماشومانو بېلا بېلې لوبې لست کړي او بیا دې د هرې ډلې استازی هغه د ټولګي په وړاندې ووایي،

نور زده کوونکي دې هغه په خپلو کتابچو کې ولیکي.

۳ـ لاندې پوښتنو ته دې مناسب ځوابونه ووایي.

- لوبې او ورزش څه شی دی؟
- لوبې او ورزش روغتیا ته څه ګټه لري؟
- لوبې او ورزش په ټولنیز لحاظ څه ګټې لري؟
- که زموږ د هېواد لوبغاړي په نړیواله کچه په سیالیو کې بریالیتوب تر لاسه کړي، تاسې ته څه احساس پیدا کېږي؟ څو تنه دې د ټولګي په مخ کې پرې خبرې وکړي.

۴ـ په متن کې فعلونه په نښه او هغه په مناسبو جملو کې وکاروئ.

۵ـ زده کوونکي دې د عکس له مخې د لوبو په اړه خبرې وکړي:



۶ـ د لاندې جملو خالي ځايونه په پنسل په مناسبو کلمو ډک کړئ :

- لوبې او ورزش ډېرې ................ ګټې لري.
- د واليبال لوبه د ...................... ترمنځ کېږي.
- وز لوبه زموږ د هېواد يوه ................ ده.
- د لوبو او ورزش په ترسره کولو د انسان د بدن غړي ................ کېږي.
- لوبې د لوبغاړو ترمنځ د ............... او ..................... د رامنځته کيدو سبب ګرځي.

## کورنۍ دنده

هرزده کوونکی دې د خپلې خوښې يوې لوبې په اړه معلومات وليکي او هغه دې د پښتو ژبې په بل درسي ساعت کې ټولګيوالو ته ووايي.

هغه څوک چې بدني تمرينونه کوي، هيڅ ډول درملو ته اړتيا نه لري، د هغه درمل او دوا په بدني حرکتونو کې ده.

(ابو علي سينا بلخي)

# ویکتور هوگو



- تاسو په نړیوالو ادبي شخصیتونو کې د چا نومونه پیژنئ؟
- موږ ته د نړۍ د ادبي نامتو څېرو پېژندل څه گټه لري؟

د نړۍ د ادبیا تو په تاریخ کې ډېرې سترې ادبي څېرې شته چې د خپلو ارزښتناکو ادبي اثارو له امله یې نړیوال نوم او شهرت تر لاسه کړی دی. له دغو ادبي څېرو څخه د فرانسې نامتو لیکوال، ویکتور هوگو هم و چې د لوړو ادبي ارزښتمنو اثارو د لیکلو له امله یې زیات نړیوال شهرت په برخه شوی دی. دلته یې په دې لوست کې درپیژنو.

پیاوړی لیکوال او شاعر ویکتور هوګو په ۱۸۰۲ م. کال د فرانسې په بیزانسون ښار کې زیږېدلی دی. پلار یې د پوځ لوړ پوړی دولتي چارواکی او جنرال و.

د هوګو کورنۍ د ده تر زیږېدلو څه موده وروسته د بیزان سون له ښار څخه د پاریس ښار ته ولېږدول شوه. هوګو د ځوانۍ پر مهال په شعر ویلو پیل وکړ. له ادبیاتو او مطبوعاتو سره د زیاتې مینې له کبله یې یوه مجله هم خپره کړه چې تر ۱۸۲۱ م. پورې یې خپرونو دوام وکړ.

د شعرونو لومړنۍ ټولګه یې تر خپرېدو وروسته د لوستونکو له ډېر تاوده هرکلي سره مخامخ شوه او ستره ادبي جایزه یې هم تر لاسه کړه. په ۱۸۴۳ م. کال د هوګو په ژوندکې هغه مهال بدلون رامنځته شو چې ځوانه لور یې مړه شوه. تر دې وروسته هوګو له ادبیاتو څخه سیاست ته مخه وکړه.

کله چې ناپلیون واکمن شو، ویکتور هوګو له هغه سره مخالفت پیل کړ. په پایله کې هغه اړ شو چې فرانسه پرېږدي. هغه لومړی بلژیک او بیا انګلستان ته لاړ.

ویکتور هوګو د انګلستان د جرسي په جزیره کې د استوګنې پر مهال د ((مجازات)) په نامه اثر ولیکه او په همدغه کال یې د خپلو شعرونو ټولګه د ((نندار چیان)) تر سرلیک لاندې هم خپره کړه. نوموړی تر ۱۸۷۰ م. کال پورې هلته پاتې شو او خپل نور مشهور اثار د ((پېړیو حکایتونه)) او ((بینوایان)) یې ولیکل.

په ۱۸۷۰ م. کال هغه مهال چې په فرانسه کې جمهوري حکومت رامنځته شو، هوګو بیرته پاریس ته ستون شو. د فرانسې خلک تر ننه هغه ته د یو ستر ملي او ولسي لیکوال په سترګه ګوري. مشهورو اثارو یې نوم د نړۍ د ادبیاتو په تاریخ کې د تل لپاره خوندي کړی دی. د هوګو اثار د نړۍ په ډېرو ژبو ژباړل شوي دي.

ویکتور هوګو په ۱۸۸۵ م. کال د ۸۳ کالو په عمر له دې نړۍ څخه سترګې پټې کړې دي.

د متن لنډيز:

ويکتور هوگو د فرانسې نامتو ليکوال و چې د خپل ادبي شهکار ((بينوايان)) په ليکلو يې ستر نړيوال نوم او شهرت تر لاسه کړی دی. په نړيوالو ادبيا تو کې به ډېر لږ ليکوال په خپل وخت کې د ويکتور هوگو په څېر هر اړخيز نړيوال شهرت ته رسيدلي وي. د هوگو اثار په نړيوالو ژبو ژباړل شوي دي.

## فعاليتونه

۱ـ ځو زده کوونکي دې دنورو ټولگيوالو په استازيتوب متن په لوړ غږ ولولي.

◆ ځينې زده کوونکي دې د متن يو يو پاراگراف ولولي.

۲ـ زده کوونکي دې هغه لغتونه چې ښوونکي پر تخته ليکلي او معنا کړي دي، پخپلو کتابچو کې وليکي.

◆ ځو زده کوونکي دې په تخته ليکل شوي لغتونه په مناسبو جملو کې وکاروي.

۳ـ زده کوونکي دې د خپل هېواد د ځو مشهورو ادبي شخصيتونو نومونه وليکي، ځينې دې هغه د ټولگيوالو په وړاندې ووايي.

۴ـ لاندې پوښتنو ته ځواب ورکړئ:

◆ ويکتور هوگو څنگه نړيوال ادبي شهرت ترلاسه کړ؟

◆ ويکتور هوگو ولې او څه ډول له ستونزو سره مخامخ شو؟

◆ کومې پيښې د ويکتور هوگو په ژوندکې بدلون راوست؟

۵ـ د لاندې جمع نومونو مفرده بڼه په خپلو کتابچو کې وليکئ، په مناسبو جملو کې يې وکاروئ:

نومونه زده کوونکي شخصيتونه شاعران اديبوهان

◆ د لاندې جملو سمه معنوي او املايي بڼه د هغو په وړاندې په پنسل سره وليکئ:

هوگو د انگلستان اوسیدونکی و. (          )

هوگو یو مشهور سوداگر و. (          )

هوگو زوی و د یو جنرال. (          )

۶_ هرزده کوونکی دې د خپل ځنگ ټولگیوال ته له متن څخه یوه برخه د املاء په توگه و وایي او بیا دې هغه د کتاب له مخې سمه کړي.

۷_ په لاندې کلمو کې نومونه، صفتونه او فعلونه جلا کړئ:

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| ښکلی | هوگو | لاړ | پیاوړی | محمود |
| خوړل | نومیالی | ابن سینا | لیکل | ژړل |

## کورنۍ دنده

داسې یو متن په کور کې ولیکئ چې د پښتو پنځه واړه ((ی گانې)) پکې مراعات شوې وي، په بل پښتو درسي ساعت کې یې خپلو ټولگیوالو ته د تختې پرمخ ولیکئ او راغلې ((ی گانې)) پکې په نښه کړئ.

ازادي

د اسمانونو، د چمنونو او د سیندونو بې ازاره لارویانو ته زبان مه رسوئ او ازادی ته یې په احترام وگورئ. د دغو بېوزلو او بې گناهو ازادي مه ایساروئ چې د تقدیر او سرنوشت قاضي او حاکم ستاسو ازادي سلب نه کړي.

(ویکتور هوگو)

شوارلسم لوست

# د بشر حقونه

■ تاسې بشري حقونه پېژنئ؟

■ د نورو حق ته باید څرنګه درناوی ولرو؟

انسانان په ټولنه کې یو لړ حقونه لري چې دا د دوی ځانګړي حقونه دي. دغه راز په ټولنه کې د نورو حقونو په وړاندې مکلفیتونه هم لري چې هغو ته باید درناوی وکړي.

په دې لوست کې په ټولنه کې د بشري حقونو په هکله خبرې کوو او لولو چې انسانان په ټولنه کې د کومو حقونو لرونکي دي.

الله ﷻ چې په دې نړۍ کې انسان پیداکړی، له هماغه پیله یې پرې د زیات شمېر بشري حقونو لورینه هم کړې ده. بشر ته د خدای ﷻ د ورکړو حقونو شمېره ډېره زیاته ده، لکه د ژوندکولو حق، د ملکیت لرلو حق، د زده کړې حق، د روغتیا حق، د تابعیت حق، د فکر او بیان د ښکاره کولو حق، د انساني کرامت او شخصیت د خوندیتوب حق او نور. د ټولنیز ژوند په بهیر کې وخت په وخت د زورواکو له خوا د کمزورو حقونه په زورزیاتي تر پښو لاندې او له هغو څخه بې برخې کېږي. که وګورو، له خپلو حقونو څخه دفاع او د ترلاسه کولو لپاره یې هلې ځلې ډېر اوږد تاریخ لري. ډېرې بېلګې یې په بشري تاریخ کې خوندي دي.

د اسلام د سپیڅلي دین په راتګ سره د بشر حقونو ته پوره درناوی وشو او په بېلابېلو بڼو موجود ټول توپیرونه یې له منځه یوړل. په الهي احکامو او نبوي ارشادا تو کې د دغو بشري حقونو د تثبیت په هکله ډېرې زیا تې لارښوونې شته. د بېلګې په توګه کله چې حضرت ابوذر غفاري حضرت بلال ته وویل: ای حبشي غلامه! حضرت محمد ﷺ ورته وفرمایل : تور حبشي او سید قریشي دواړه برابر او د خدای ﷻ بنده ګان دي.

نو ویلای شو چې ټول انسانان برابر حقونه لري او په ځانګړي او ټولنیز ژوند کې باید له هغو څخه برخمن شي.

د بشري تاریخ په اوږدو کې، که څه هم د نړۍ په ګوټ ګوټ کې وګړو د خپلو بشري حقونو د ترلاسه کولو لپاره ځانګړې او ډله ییزې هلې ځلې کړې او غږونه یې پورته کړي دي، خو په نړیواله کچه داسې کومه اداره نه وه چې له هغوی څخه چې حقونه یې سلب شوي، ملا تړ وکړي. د دویمې نړیوالې جګړې په بهیر کې چې زیات شمېر انسانان ووژل شول او په نړیواله کچه په بشري حقونو سخت تیری وشو، د جګړې له پای ته رسېدو وروسته د دې اړتیا پیښه شوه چې په نړیواله کچه داسې یوه لایحه او قانون رامنځته کړي چې د بشر له حقونو څخه دفاع وکړي. په دې لړ کې په ۱۹۴۷ م. کال د ملګرو ملتونو د عمومي ټولنې له خوا د بشر د حقونو نړیواله اعلامیه تصویب شوه. دا اعلامیه یوه سریزه او (۳۰) مادې لري. وروسته بیا په بېلا بېلو وختونو کې د بشري حقونو په

اړوند بېلا بېل کنوانسیونونه تصویب شوي دي چې هر یو په خپل ځای ځانګړی ارزښت او اهمیت لري.

د بشر د حقونو د نړیوالې اعلامیې له مخې انسان تر هر څه لومړی د ژوند کولو، ازادۍ او د شخصي امنیت لرلو حق لري . همدارنګه هیڅوک باید شکنجه یا ونه ربړول شي او نه دې هغه له زور زیاتي، ناوړه سلوک او سپکاوي سره مخامخ کړای شي.

هر څوک حق لري چې حقوقي شخصیت یې په رسمیت وپېژندل شي. ټول د قانون په وړاندې برابر دي. هیڅوک دې په خپل سر بندي یا له خپل ټاټوبي تبعید نه کړای شي. د چا په شرافت او ابرو دې تیری نه کېږي. هر څوک حق لري چې ازاد فکر وکړي، خپل فکر او نظر په ازادانه ډول څرګند کړي.

د بیان ازادي چې د بشر د حقوقو د نړیوالې اعلامیې په نولسمه ماده کې راغلې، د بشر له ډېرو مهمو او بنسټیزو حقونو څخه ګڼل شوې ده. په دې برخه کې یادونه شوې ده چې هر څوک د بیان د ازادۍ حق لري او د خپل نظر په څرګندولو کې باید ویره او ډار ونه لري.

د بشر د حقوقو د نړیوالې اعلامیې دغه ماده خلکو ته دا حق ورکوي چې له هرې وسیلې څخه چې کېدای شي اطلاعات او معلومات ترلاسه کړي او یا یې نورو ته ورسوي، خو د یادونې وړ ده چې د بیان ازادي هم خپلې پولې او حدونه لري تر هغه چې په کې بشري کرامت ته سپکاوی نه وي رامنځته شوی او د هغه په وسیله د چا بشري حقوق تر پښو لاندې نه شي، د چا له دیني او مذهبي عقیدو، قومي، نژادي او توکمیز حیثیت او له خپلو ملي هېوادنیو ګټو سره په ټکر کې نه وي. د بیان ازادي جایز ده.

ــ زده کړه یا ښوونه او روزنه چې هم د انسان له ډېرو مهمو او لومړنیو حقونو څخه ده، د بشر د نړیوالې اعلامیې په شپږویشتمه ماده کې د هغې په اړه داسې راغلې دي:

ــ هر څوک حق لري چې زده کړه وکړي. زده کړه به لږ تر لږه په لومړنیو دورو کې وړیا وي. لومړنۍ زده کړه به اجباري وي، فني او حرفوي زده کړې به د ټولو په واک کې وي.

ــ د زده کړو موخه به د انساني شخصیت وده، د بشر حقونو ته درناوی او بنسټیزه

ازادي وي.

ـ مور او پلار به د خپل ماشوم په اړه د زده کړې د ډول په ټاکنه کې لومړیتوب ولري.

ـ دولت مکلف دی چې د وګړو لپاره بې له کوم توپیره د زده کړې لارې چارې برابرې کړي، چې په دې توګه د خلکو د ذهني روزنې شرایط برابر شي.

د بشر د حقونو په نړیواله اعلامیه کې د داسې نورو ډېرو حقونو یادونه هم شوې ده چې هغه ټول د انسان طبیعي او ټولنیز حقونه ګڼل کېږي.

په نړیواله کچه ټول هغه هېوادونه چې د بشر د حقونو اعلامیه یې لاسلیک کړې ده، په ملي کچه دغه دولتونه مکلف ګڼل کېږي چې د هغو رعایت وکړي. د ملګرو ملتونو د بشري حقونو اداره او د بشر د حقونو بېلا بېلې نړیوالې ټولنې په نړۍ کې د بشري حقونو حالت ته پاملرنه کوي او هغه څاري.

اوس چې زموږ په هېواد کې د سولې، سوکالۍ، ټولنیزو او اقتصادي پرمختګونو لپاره لارې چارې برابرې شوي دي، دولت د بشر ي حقونو د نړیوالې اعلامیې د لاسلیک کوونکي او ژمن غړي په توګه د بشر حقونو ته پاملرنه کوي. په هېواد کې د بشر د حقونو خپلواک کمیسیون رامنځته شوی چې د بشر له حقونو څخه دسر غړونې او نورو اړوندو مسایلو د څارنې چارې سمبالوي.

دمتن لنډیز:

هر انسان که ښځه وي او که نر، په ټولنه کې د ژوندکولو، د فکر او بیان د ازادۍ حق، دانساني کرامت او شخصیت د خوندیتوب حق لري. په اسلام کې هم د بشر د حقونو پوره درناوی شوی دی او په نړیواله کچه هم د بشر د حقونو د ورکولو او درناوي په هکله ځانګړي قوانین رامنځته شوي او هېوادونه یې په رعایت کولو اړ او مکلف ګڼل کېږي. اوس داسې ادارې او سازمانونه شته چې په ټوله نړۍ کې د بشر د حقونو حالت له نژدې څخه څاري .

## فعالیتونه

۱ـ څو زده کوونکي دې په اسلام کې د بشر حقونه د متن له مخې ووايي او څو تنه دې د بشر د حقونو په نړيوالې اعلاميې کې راغلي حقونه د متن له مخې ووايي.

ـ څو زده کوونکي دې په خپله خوښه د متن بېلا بېل پراګرافونه ولولي.

۲ـ زده کوونکي دې په دوو ډلو ووېشل شي : يوه ډله دې په متن کې ((مفردې کلمې)) وليکي او بله دې ((مرکبې کلمې)) او بيا دې د هرې ډلې استازي هغه د ټولګي په مخ کې ووايي.

۳ـ لاندې پوښتنو ته ځواب ووايئ:

- د اسلام دين انسان ته کوم حقونه ورکړي دي؟
- د بشر د حقونو په نړيوالې اعلاميې کې د کومو بشري حقونو يادونه شوې ده؟
- دولتونه د بشري حقونو په هکله په څه مکلف شوي دي؟
- تاسو له دې لوست څخه څه مفهوم ترلاسه کړ؟
- د بشر د حقونو د ورکړې په برخه کې ستاسو نظر څه دی؟
- که په ټولنه کې بشري حقونه ورنه کړل شي، ستاسو په نظر به څه زيانونه رامنځته شي؟

۴ـ په لاندې جدول کې تش ځايونه په مناسبو جملو په پنسل ډک کړئ:

| ماضي (تېره زمانه) | حال (اوس مهال) | مستقبل (راتلونکې زمانه) |
|---|---|---|
| ما ليک وليکه. | | |
| | | احمد به راشي. |
| | زه لوست وايم. | |
| | | ځوک به درس ووايي. |

۵_ لاندې جملې ولولئ او د سمې جملې په مخامخ چوکاټ کې په پنسل نښه وکړئ :

- بشر ته په ټولنه کې حقونه ورکړل شوي دي. ☐
- بشر ته ځینې حقونه ورکړل شوي دي. ☐
- د بشر د حقونو فکر له دویمې نړیوالې جګړې وروسته رامنځته شوی دی. ☐
- له لومړۍ نړیوالې جګړې وروسته رامنځته شو. ☐

## کورنۍ دنده

ستاسو په شاوخوا کې د بشر د حقونو حالت څنګه دی؟ په دې اړه له خپل مور او پلار او نورو مشرانو څخه هم وپوښتئ، که مو په زړه پورې څه پیدا کړل، له ځانه سره یې یادداشت کړئ، د بلې ورځې پښتو درسي ساعت کې پرې خبرې وکړئ.



پنځلسم لوست

# بلخي ابن سينا



■ زموږ د هېواد د لرغونو نوميالیو پوهانو په ډله کې چې په ملي او نړیواله کچه له لوړ نوم او شهرت څخه برخمن دي، د چا له نامه سره اشنا یاست؟ کومې داسې نامتو څېرې پېژنئ؟

موږ دخپل هېواد په تاریخ کې ډېر نومیالي علمي او فرهنګي شخصیتونه لرو چې ویاړلي علمي او فرهنګي کارنامې لري . هغوی نه یوازې زموږ د هېوادوالو، بلکې په نړیواله کچه د ټول بشریت لپاره د ویاړ سبب دي . له دغو نومیالیو علمي او فرهنګي شخصیتونو څخه یو هم ابن سینا بلخي دی چې په دې لوست کې یې درپېژنو.

ابن سینا بلخي زمونږ د هېواد او په نړیواله کچه له سترو عالمانو، پوهانو او طبیبانو څخه ګڼل کېږي . اصلي نوم یې حسین دی، په شیخ الرئیس او ابن سینا مشهور دی . په یو روایت په ۳۶۳ هـ . ق . او د یو بل روایت له مخې په ۳۷۰ هـ . ق. کال د بخارا په ((افشنه)) نومي کلي کې زېږېدلی و.

پلار یې عبدالله، د بلخ له نومیالیو څخه و او په سکندریه نومي سیمه کې یې استوګنه لرله.

د منصور بن عبدالمالک ساماني د واکمنۍ په وخت کې بخارا ته چې د سامانیانو پایتخت و، لاړ. څرنګه چې عبدالله ډېر با تد بیره شخصیت و، دربار ته یې لاره پیدا کړه او ډېر ژر د دربار په مخورو کې وګڼل شو، هلته یې د افشنه په کلي کې ((ستاره)) نومې ښځه په نکاح کړه، خدای ﷻ زوی ورکړ، نوم یې پرې ((حسین)) کېښود چې وروسته یې د ابن سینا په نوم نړیوال شهرت پیدا کړ. اوس نه یوازې زمونږ هېواد پرې ویاړي، بلکې ټوله نړۍ او انسانیت پر هغه ویاړ او فخر کوي.

ابن سینا دومره لوړ استعداد او پیاوړی ذهن درلود چې په لس کلنۍ کې یې قرآن عظیم الشان او نور مروجه دیني علوم، د دین اصول، د ادب د علم اصول، صرف، نحو، لغت، معاني، بیان او نور زده کړل او بیا یې له محمود مساح څخه چې په هغه وخت کې د ریاضي او نورو طبیعي علومو لوی عالم و، ریاضي او نور علوم هم زده کړل.

نوموړی وروسته د طبابت په زده کړه بوخت شو. شپاړس کلن و چې د خپلې سیمې په نومیالیو دیني عالمانو او طبیبانو کې وشمېرل شو، د نوم او شهرت اوازې یې هر لورته خپرې شوې. وایي چې یو ځل نوح بن منصور ساماني پاچا ډېر ناروغه شو، نو ابن سینا د هغه دارو درمل وکړل . هغه ژر جوړ شو، کله چې منصور د ابن سینا دا بې سارې پوهه او استعداد ولید، سمدستي یې هغه ته اجازه ورکړه چې د پاچا له ځانګړې شاهي کتابتون څخه ګټه واخلي .

ابن سینا چې د ډېر تیز ذهن او قوي حافظې خاوند و، په ډېره لږه موده کې یې د هغه کتابتون ډېر مهم کتابونه ولوستل او د هغو زیا تې برخې یې خپلې حافظې ته وسپارلې.

په ۲۱ کلنۍ کې یې د کتابونو په تالیف پیل وکړ او د ژوند ډېره برخه یې په لیکلو او لوستلو تېره کړه. هغه هېڅکله په لیکلو او لوستلو نه ستړی کېده. که د ورځې به یې حکومتي او دفتري کارونه کول، نو د شپې به یې تر ډېره وخته مطالعه کوله او یا به یې کتابونه لیکل. هغه په لیکلو کې دومره چټک و چې د خپل مشهور اثر (شفاء) اتلس ټوکه یې په شلو میاشتو کې لیکلي دي.

ابن سینا د پلار تر مړینې وروسته هم په بخارا کې و او د نوح بن منصور ساماني په دربار کې یې ښه درناوی کېده. خو کله چې د سامانیانو واکمني ګډه وډه شوه او د غزنویانو تر سلطې لاندې راغلل، نو ابن سینا ګرګانج ته لاړ.

کله چې سلطان محمود غزنوي ټوله بخارا ونیوله، څرنګه چې هغه د ابن سینا له علمي مقام، نوم او شهرت څخه خبر و، غوښتل یې چې له ځان سره یې غزني ته راولي، په هغه پسې یې خپل استازی وروليږه، خو را نغی او له هغه ځایه نشاپور ته او بیا جرجان ته ولاړ. هلته د قابوس واکمني وه چې ډېر علم پالونکی واکمن و. د ابن سینا یې ډېر درناوی وکړ. ابن سینا هلته په طبابت لاس پورې کړ او ډېر ژر د لوړ نوم او شهرت خاوند شو. کله چې هلته اړ و دوړ پیښ شو، ابن سینا (ری) او بیا همدان ته لاړ. هلته شمس الدوله امیر و. کله چې ابن سینا د هغه د ناروغۍ درملنه وکړه، د وزارت چارې یې وروسپارلې. ابن سینا په همدغه وخت کې د خپل شاګرد ابو عبیدالله په غوښتنه د (الشفاء) او (القانون) مشهور کتابونه ولیکل چې نړیوال شهرت لري او په ډېرو ژبو ژباړل شوي دي. ابن سینا د خپل وخت ډېر لوی دیني عالم و. د دیني علومو په بېلا بېلو برخو، لکه تفسیر، حدیث، فقه، صرف، نحو او نورو په هکله یې زیات شمېر اثار لیکلي دي.

نوموړی یو لوی فیلسوف و. د منطق، فلسفې، روحیاتو او اخلاقو په هکله هم ډېر تالیفات لري. لوی طبیب او حکیم و. د طبابت په هکله یې داسې کتابونه لیکلي دي چې اوس هم د اروپا او نورې نړۍ په پوهنتونونو او طبي تعلیمي مرکزونو کې لوستل کېږي.

ابن سینا په دري، عربي، او ترکي ژبو ښه پوهېده او لیکنې یې پرې کولی شوې او شعرونه یې هم پرې ویلی شول. لنډه دا چې ابن سینا د ژوند او پوهې په هره برخه کې خپل فکر او قلم ازمویلی دی او ډېر ارزښتناک اثار یې رامنځته کړي دي، ((د افغانستان نومیالي)) دکتاب مؤلف د ابن سینا دکتابونو یو اوږد لست راخیستی چې د هغه له مخې یې د ټولو تالیف کړو او ژباړلو کتابونو شمېره ۴۵۴ ته رسیدلې ده.

دغه نومیالی عالم لومړی د قولنج او بیا د میرگیو (صرع) په ناروغی اخته او د ۴۲۸ هـ . ق . کال د روژې په لومړۍ نیټه د جمعې په ورځ په همدان کې وفات او هلته خاورو ته وسپارل شو.

د متن لنډیز:

ابن سینا زموږ د هېواد د نومیالیو علمي فرهنگي شخصیتونو له ډلې څخه دی چې نه یوازې د هېواد او سیمې، بلکې په نړیواله کچه له ستر نوم او شهرت څخه برخمن دی . نوموړی نه یوازې ستر عالم او فیلسوف و، بلکې د خپل وخت له پیاوړو حکیمانو او طبیبانو څخه هم گڼل شوی دی او داسې علمي اثار یې لیکلي چې اوس د اروپا په پوهنتونونو کې لوستل کېږي او په عامه کچه ترې گټه اخیستل کېږي.

## فعالیتونه

۱ـ هر زده کوونکی دې په خپل وار له متن څخه د خپلې خوښې یو پراگراف ولولي. نور زده کوونکي دې ورته په ځیرتیا سره غوږ ونیسي.

۲ـ هر زده کوونکی دې د خپل څنگ ملگري ته د متن یوه برخه د املاء په توگه ووایي.

وروسته دې بيا دواړه خپل ليکلي متنونه د کتاب له مخې اصلاح کړي.

۳_ دې لاندې پوښتنو ته ځوابونه ورکړئ :

- ابن سينا د عمر په کوم پړاو کې د ديني علومو زده کړه پای ته ورسوله؟
- ابن سينا ته چا اجازه ورکړه چې له شاهي کتابتون څخه ګټه واخلي؟
- د ابن سينا مشهور کتاب څه نوميږي او د څه په هکله دی؟
- د ابن سينا کتابونه چېرې او په کومو طبي ښوونيزو او روزنيزو مرکزونو کې لوستل کېږي؟

۴_ په متن کې راغلي خاص نومونه او صفتونه په نښه او په خپلو کتابچو کې يې وليکئ.

- دالاندې فعلونه د زمانې له مخې معلوم او په خالي ځايونو کې يې په پنسل وليکئ :
  - زه کار کوم ( )
  - ته به درس ولولې ( )
  - تا ليک ليکلی دی ( )

۵_ له دې لاندې کلمو څخه په خپلو کتابچو کې جملې جوړې کړئ :

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| زه | ابن سينا | ښوونکی | لوبې | درس | پلرنی | |
| درناوی | ګټه | ورځ | تاتوبی | کوم | ته | |
| وايم | اصلي | ډېر | روغتيا | هره | دی | |
| بلخ | د خپل | لرې | | | | |

۶_ زده کوونکي دې په دريو ډلو وويشل شي : يوه ډله دې په دې متن کې څو مشکل لغتونه را واخلي، يو تن دې د نورو په استازيتوب هغه پرتخته وليکي. د بلې ډلې څو زده کوونکي دې هغه معنا کړي. د دريمې ډلې څو تنه دې هغه په خپل وار سره په مناسبو جملو کې استعمال کړي.

## کورنۍ دنده

د افغانستان د مشهورو او علمي څېرو په اړه له خپلو مشرانو وپوښتئ او یا که خپله معلومات لرئ په خو کرښو کې یې ولیکئ. په راتلونکي پښتو درسي ساعت کې یې ټولګیوالو ته ولولئ.



# د کابل بالاحصار



■ تاسې کله پخپلو سیمو یا نورو سیمو او ولایتونو کې لرغونې کلاګانې لیدلې دي؟
هغه لوړې کلاګانې چې په لرغونو زمانو کې د پوځي او سیاسي موخو لپاره پر غونډیو او لوړو ځایونو جوړې شوې دي، بالاحصارونه یې بولي. زموږ د هېواد په ځینو ولایتونو کې هم دغه ډول کلاګانې شته چې زیاتره اوس د کنډوالو په توګه پاتې دي، یوه هم د هېواد په پلازمېنه (کابل) کې ده چې د کابل بالاحصار یې بولي. په دې لوست کې یې درپېژنو.

زموږ د هېواد په ځينو ولايتونو کې د پوځي او دفاعي موخو لپاره په لوړو ځايونو کې کلاګانې او بالاحصارونه جوړ شوي دي چې هر يو يې په خپل ځای د تاريخي لرغونتوب له کبله ارزښت لري. هغه کلاګانې چې پر لوړو ځايونو او غونډيو جوړې شوې، د بالاحصارونو په نامه يادېږي. د کندوز، غزني، زابل، پکتيا او کابل بالاحصارونه يې ډېرې ښې بېلګې دي.



د غزني بالا حصار

د کابل د اوسني ښار په سهيل ختيځه برخه کې يوه جنګي کلا ده چې د يوې غونډۍ پر لوړه هواره سطحه له ډېرينو پلنو ديوالونو څخه جوړه شوې او د کابل د بالاحصار په نامه يادېږي.

دا کلا چې له سويل لويديځې خوانه د شېر دروازې د غره د سر په ديوال پورې نښتې، تر اوسه يې ډېرښ برجونه پر ځای ولاړ او د ليدونکو د پاملرنې وړ دي. د بالاحصار په شمالي لمنه کې يو لرغونی کوچنی ښار ودان و. له دې څخه څرګندېږي چې د بالاحصار ارګ د سلطنتي حاکمانو او چارواکو د ناستې، د نغدي پانګو (خزانو) او ارزښتمنو څيزونو د ابښودلو او ساتلو ځای و.

داسې ښکاري چې يو وخت به همدلته د هېواد او سيمې د واکمنانو برخليک ټاکل کېده، د پاچاهانو پر سر تاجونه ايښودل کېدل او له دغه ځايه د ملي پت او د هېواد د ساتنې، د واکمنۍ د پراختيا او اداره کولو لپاره کارونه سمبالېدل. د کابل لرغوني ښار له بالاحصار پرته د پاچهۍ بل مقر نه درلود.

دې غونډۍ ته په کتنه ويلای شو چې بالاحصار د لوګر د درې په خوله کې پروت

دی. د ښهر دروازې جوړښت او موقعیت د بالاحصار دفاعي ارزښت نور هم زیات کړی دی چې تر اوسه پورې د کابل بالاحصار، د کابل ښار پرگرد چاپېره د یوې حاکمې نقطې حیثیت لري.دغه ودانۍ چې زموږ د لرغوني تاریخ یوه روښانه نښه گڼل کېږي، د جوړولو د وخت او نېټې په هکله یې د تاریخ پوهانو ښېلا ښېلې نظریې موجودې دي.

د تاریخي څېړنو له مخې د دغې تاریخي کلا لرغونتوب د اسلام له راتگ څخه د مخه زمانې د یفتلیانو دورې ته رسیږي. دغې تاریخي کلا د وخت په اوږدو کې ډېر زیانونه هم لېدلي دي. د احمد شاه بابا او تیمور شاه د واکمنیو پر مهال بیا رغول شوې ده.



له انگلیسي چارواکي کیوناری سره د افغانانو جگړې او دهغه د وژل کېدو د غچ په موخه د کابل بالا حصار یو ځل د اور په لمبو کې سوځېدلی دی. د نادر خان د واکمنۍ پر مهال بیا ورغول شو او حربي لېسه په کې جوړه شوه. وروسته بیا دا ځای په ۱۳۴۵ هـ .ش. کال کې د حربي پوهنتون لپاره ځانگړی شو.

زموږ د هېواد تاریخي ځایونه او جنگي کلاگانې د دې ښکارندویې کوي چې زموږ نیکونو او پلرونو د خپل هېواد دساتنې لپاره د خپل توان په اندازه زیار ایستلی او زموږ گران هېواد یې د خپلې وینې په بیه د پردیو له ولکې څخه په میړانه ساتلی او موږ ته یې په خپلواکه توگه په میراث پرېښی دی، پر موږ هم لازمه ده چې د خپلو پلرونو او نیکونو په څېر د خپل هېواد د ساتنې او ودانۍ لپاره هلې ځلې وکړو.

سربېره پر دې د یو ارزښتناک فرهنگي میراث په توگه باید د دغې لرغونې ودانۍ بیا رغونې او ساتنې ته ځانگړې پاملرنه وشي.

**د متن لنډيز:**

د کابل بالا حصار د يو لرغوني فرهنګي ميراث په توګه له ستر ارزښت او اهميت څخه برخمن دی. دغه تاريخي کلا چې اوس د يوې کنډوالې په بڼه پاتې ده، د تاريخ په اوږدو کې يې ډېرې لوړې ژورې ليدلي او په هره پېرۍ او پوړۍ کې د واکمنانو د ناستې ځای او پلازمېنه وه. دغه ودانۍ اوس بيا رغونې او د ساتنې لپاره ځانګړې پاملرنې ته اړتيا لري. د کابل بالاحصار د افغانستان د تاريخ يوه نه هېرېدونکې او د ارزښت وړ برخه ده.

## فعاليتونه

۱ـ زده کوونکي دې په خپل خپل وار د لوست يو يو پاراګراف په لوړ اواز ولولي.

۲ـ په خپلو کتابچو کې پنځه داسې جملې وليکئ چې له متن سره نږدې تړاو ولري.

◆ له متن څخه پنځه داسې کلمې راخوښې کړئ چې د ((پ)) په توري پيل شوې وي په خپلو کتابچو کې يې وليکئ او په مناسبو جملو کې يې وکاروئ.

۳ـ زده کوونکي دې په دوو ډلو بېل کړای شي: د يوې ډلې يو تن دې د نورو په استازيتوب د متن يو پراګراف ولولي. ښوونکی دې د هغه په اړه ځينې پوښتنې پر توره تخته وليکي او د هغې بلې ډلې له ځينو زده کوونکو څخه دې يې ځواب وغواړي. بيا دا بله ډله هم په هماغه ډول له متن څخه بل پراګراف لولي، ښوونکی يې پوښتنې پر تخته ليکي او د بلې ډلې له څو زده کوونکو څخه يې ځوابونه غواړي. دا لړۍ د وخت په پام کې نيولو سره دوام مومي.

۴ـ دې لاندې جملې ته دې هر زده کوونکی د خپل ذوق له مخې په مناسبه توګه پراختيا ورکړي او په پنسل دې څو پرله پسې معنا لرونکې جملې وليکي:

موږ ښوونځي ته د زده کړې لپاره راځو او غواړو چې ...............................

.....................................................................................

.....................................................................................

.....................................................................................

۵_ دغو لاندې پوښتنو ته ځواب ووايئ:

- بالاحصارونه د کومو موخو او هدفونو لپاره جوړ شوي دي؟
- بالا حصارونه اوس موږ ته څه ارزښت او اهميت لري؟
- که د بالاحصارونو بيا رغونه او ساتنه ونشي، څه به پيښ شي؟
- که چېرې د هېواد په يو بل ولايت کې کوم بالاحصار پېژنئ د هغه په هکله د ټولګيوالو په مخکې څه ووايئ.

۶_ دوې داسې جملې وليکئ چې دوه صفتونه پکې راغلي وي.

_ درې داسې جملې وليکئ چې د درې واړو زمانو (اوس مهال _ تېر مهال _ راتلونکی مهال) فعلونه پکې راغلي وي.

۷_ ځينې زده کوونکي دې د ټولګي مخې ته راوبلل شي چې د بالاحصار د ارزښت او اهميت په اړه خبرې وکړي.

## کورنۍ دنده

که په سيمه کې مو کومه پخوانۍ کلا يا ودانۍ وي، په اړه يې معلومات وليکئ د پښتو په بل درسي ساعت کې يې د ټولګي په وړاندې ولولئ.

## د سبا فکر

هر څوک د خپلې راتلونکې په فکر کې وي. زيار ګالي، کړاو ونه زغمي، هڅه کوي او په دې هيله وي چې سبا يې تر نن ښه شي. خواران په دې هيله وي چې بډايان شي. زده کوونکي په دې هيله وي چې زده کړه يې سرته ورسيږي. د هېواد او ټولنې خدمت ته اماده شي. مساپر په دې تکل کې وي چې خپل کور، کلي او ټاټوبي ته ورسيږي. رنځوران په دې ارمان وي چې له رنځ او ربړې څخه خلاص شي.

همدغه د سبا د ښه والي هيلې او هڅې دي چې د نړۍ په هر څه کې پرله پسې بدلون، پرمختګ او سمون راولي. له چا سره چې د خپلې سبا ورځې فکر نه وي، خپلې ښې اينده ته اميدوار نه وي او د خپلو ښو هيلو د پوره کېدو له پاره زيار و نه باسي، هغه په ژوند کې نېکمرغه کيدلی نه شي. انسان د اميد او عمل په رڼا کې پرمختګ کوي.

موږ چې نن په ښوونځي کې سبق وايو، بايد خپلې سبا ته اميدواره واوسو. دا په دې کېږي چې غير حاضري ونه کړو، خپل درسونه ښه ياد کړو، کورنۍ دندې ترسره کړو. د خپلو ښوونکو په لارښوونو عمل وکړو او له همدغې شيبې څخه د کار او زيار لپاره تکل وکړو او ورته ملا وتړو.

او ولسم لوست

# ادبیه او باتدبیره مېرمن

## بي بي زینب



■ تاسې د هېواد په پخوانيو نوميالیو مېرمنو کې د چا له نامه سره اشنايي لرئ؟

زموږ لرغوني هېواد د تاريخ په اوږدو کې له ښځو او نارينه وو څخه ډېر نوميالي علمي، فرهنګي او سياسي شخصيتونه په خپله غېږه کې روزلي او پاللي دي. د دوی وياړلي کارنامې د تاريخ په پاڼو کې په زرينو کرښو ليکلې شوي دي.

يوه له دغو نوميالیو څخه مېرمن زينب ده چې د فرهنګ اوسياست په دواړو ډګرونو کې تلپاتې کارنامې لري، په دې لوست کې یې درپېژنو.

بي بي زينب چې زموږ د هېواد د نوميالیو فرهنګي او سياسي شخصيتونو له ډلې ښځه ده، د ملي مشر ميرويس خان نيکه لور وه.

نوموړې د خپل وخت د دوديزو ديني او ادبي علومو زده کړې په هغه وخت کې د کندهار له نوميالي ديني عالم ملا نور محمد غلجي څخه چې د ميرويس نيکه د کورنۍ ځانګړی ښوونکی و، ترسره کړې وې.

زينب چې له غوره اخلاقو، لوړې پوهې او فضيلت څخه برخمنه مېرمن وه، سربېره پردې چې د خپلې کورنۍ د ښځو د ښوونې او روزنې او ليک لوست د زده کړې چارې يې په پوره اهتمام سرته رسولې، له خپل ورور شاه حسين هوتک سره يې هم د حکومت د چارو په سمبالښت کې مرسته کوله.

د پټې خزانې مؤلف محمد هوتک چې د دغې نوميالۍ مېرمنې هم مهال ليکوال او د شاه حسين هوتک د دربار له علمي، ادبي شخصيتونو او مخورينو څخه و، په ((پټه خزانه)) کې يې د دې نوميالۍ مېرمنې د پېژندګلوۍ په اړه ليکلي دي:

(( بي بي زينب ډېره هوښياره، عالمه او په چارو پوهه ښځه ده، د پاچا (شاه حسين هوتک) په چارو کې تدبيرونه کوي. په خپله رايه او مشوره د چارو ستونزې حل کوي. د وخت پاچا د هغې په مشورو عمل کوي او نصيحتونه يې په غور اوري.))

د پټې خزانې د مؤلف د څرګندونو له مخې بي بي زينب د ديني علومو او د حکومت په کارونو کې پر پوهې سربېره اديبه او شاعره هم وه. د پښتو او دري شاعرانو د اشعارو ژوره مطالعه يې درلوده. پخپله يې هم پښتو شعر وايه او د اديبانو او شاعرانو ډېر درناوی يې کاوه. د ژوند ډېره برخه يې په عبادت، مطالعه او د پاچا د حرم مېرمنو ته د علومو په تدريس او دليک لوست د ښودنې په چارو تېراوه.

د ((تاريخ افاغنه)) د ليکوال سيد ظهورالحسن موسوي د وينا له مخې هغه مهال چې نادر افشار پر کندهار بريد وکړ او ښار يې کلا بند کړ، بي بي زينب په دغه يو کال او څو مياشتنۍ دفاع کې د يادونې او ستاينې وړ نقش درلود او د هغو افغاني مشرانو په ډله کې هم شامله وه چې د متارکې د شرطونو په باب يې په ۱۱۴۹ هـ . ق. کال له نادر افشار

سره خبرې کولې.

د دغې نومیالۍ مېرمنې ژوند تر همدغه پورتني کال پورې یقیني دی. کله چې نادر افشار کندهار ونیو، شاه حسین هوتک یې له خپلې کورنۍ سره د فارس مازندران ته جلا وطنی کړ، مېرمن زینب هم له خپل ورور سره په دغه سفر کې ملګرې وه. تر دې وروسته یې بیا د ژوند د پېښو په هکله تاریخي سند او معلومات په لاس کې نشته.

د مېرمن زینب د شعرونو دیوان تر اوسه نه دی ترلاسه شوی. د شعر یوه بېلګه یې چې په ۱۱۳۷ هـ. ق. کال یې د خپل ورور شاه محمود هوتک د مړینې په ویرنه کې ویلې، د پټې خزانې په وسیله خوندي شوې او تر موږ رارسیدلې ده. د دغه شعر په لوستلو سره موږ ته د نوموړې مېرمنې علمي او ادبي ځېره ښه راڅرګند یدای شي. په پای کې یې د شعر څو کرښې لولو:

غږ سو چې ورور تېر له دنیا سو، نا
کندهار واړه په ژړا سو، نا
زړه مې په ویر کې مبتلا سو، نا
چې شاه محمود له ما جلا سو، نا
دا روڼ جهان راته تور تم دی، نا
زړه د بیلتون په تیغ کړم دی، نا
هوتک غمجن په دې ماتم دی، نا
د پاچهۍ تاج مو برهم دی، نا
چې شاه محمود تېر له دنیا سو، نا
کندهار واړه په ژړا سو، نا
×××
ځوان و، مېړه د توري جنګ و، نا
ولاړ د کام په نام او ننګ و، نا


شاه محمود هوتک

دښمن له ده په وینو رنګ و، نا
پر میدان شېر و یا پلنګ و، نا
افسوس چې مرګ د ده په خوا سو، نا
کندهار واړه په ژړا سو، نا

×××

محموده نه یوازې خور ژاړي
پر مرګ دې ټوله کلی کور ژاړي
خپلوان لا څه پاچا دې ورور ژاړي
پښتون دې ټول په واویلا سو، نا
کندهار واړه په ژړا سو، نا

×××

اصفهان پاته تاج نسکور عالمه
چې شاه محمود سو نن په ګور عالمه
د پښتون لمر سو، تیاره تور عالمه
راته دښمن به کا پیغور عالمه
چې پاچا ولاړ پښتون ګدا سو نا
کندهار واړه په ژړا سو نا

×××

لښکر سو خپور پښتون ولاړ دی اریان
په خاورو ځای کا شاه محمود عالیشان
پاته سو تخت و تاج د ټول اصفهان
زړه یې راسوړ سو، کا خوښي دښمنان
وایي پښتون اوس بې پاچا سو، نا
کندهار واړه په ژړا سو، نا

اورم ناري د غم چې کړينه فرياد
پښتون په مرگ د شاه محمود سو برباد
زړونه چې تل به و، ښادمن سوه ناښاد
د ساندو ږغ دی چې راوړينه يې باد
ماتم زده پير و برنا سو، نا
کندهار واړه په ژړا سو، نا
×××
ورورهٔ! مقر دې ستا مولا کي جنت
در دې کي تاته پسله مرگه راحت
روح دې وه ښاد په لويه ورځ د قيامت
مخ دې وه روڼ د خدای په مهرو رحمت
د خالق رحم تل پر تا سو، نا
کندهار واړه په ژړا سو، نا

**د متن لنډيز:**

**بي بي زينب د ميرويس خان نيکه لور، عالمه، اديبه، فاضله مېرمن وه. د خپلې کورنۍ ښځو ته د ليک لوست او ديني علومو پر زده کړه سربيره يې له خپل ورور شاه حسين هوتک سره د سلطنت او واکمنۍ د چارو په سمبالښت کې هم مرسته کوله. شاعره هم وه او په ادبياتو کې يې ژوره مطالعه درلوده. د شعر ديوان يې تر اوسه نه دی ترلاسه شوی.**

## فعالیتونه

۱ـ د دغه متن یو یو پراګراف دې زده کوونکي په خپل خپل نوبت په لوړ غږ ولولي.

۲ـ ځینې زده کوونکي دې د ټولګي مخې ته راوبلل شي چې د شعر مفهوم په خپلو الفاظو کې ووايي.

۳ـ دې لاندې پوښتنو ته ځوابونه ووایئ:

- مېرمن زینب څوک وه؟
- مېرمن زینب د خپلې کورنۍ ښځو ته د علومو او د لیک لوست په زده کړې سربېره نورې څه چارې پر مخ بیولې؟
- د مېرمن زینب په اړه کره معلومات موږ ته له کومو کتابونو څخه ترلاسه شوي دي؟

۴ـ متن دې په غور ولوستل شي او په هغه کې دې راغلي خاص نومونه په کتابچو کې ولیکل شي.

۵ـ پنځه داسې جملې ولیکئ چې د پښتو ښځینه ((ی)) ګانې پکې راغلي وي.

۶ـ په دې لاندې جملو کې خالي ځایونه په مناسبو کلمو په پنسل سره ډک کړئ:

- مېرمن زینب زموږ د ملي مشر .................... لور وه.
- زینب یوه عالمه، فاضله او .................... مېرمن .......... .
- مېرمن زینب له خپل ورور .................... سره د پاچاهۍ د چارو په سمبالښت کې .................... کوله.

## کورنۍ دنده

که مېرمن زینبې ته ورته کومه شاعره پېژنئ په اړه یې معلومات ولیکئ. په دې اړه له کتاب، مور او پلار نه هم مرسته غوښتی شئ. بیا ورځ یې په ټولګي کې واوروئ.

اتلسم لوست

# کتاب او کتابتون



■ تاسې د ښوونځي له کتابونو پرته کله نور کتابونه مطالعه کړي دي؟ که مو مطالعه کړي وي چېرې، کوم او د چا کتابونه وو؟

د پوهې او معلوماتو د ترلاسه کولو او د ذهني ودې لپاره کتاب تر ټولو غوره او اغېزناکه وسيله ده. د کتابونو تر لاسه کولو او مطالعې لپاره بيا تر ټولو ښه ځای کتابتون دی. په دې لوست کې د کتاب، کتابتون او مطالعې په اړه معلومات درکوو.

موږ په داسې زمانه کې ژوند کوو چې کتابونه ډېر او ترلاسه کول یې اسانه دي. اوس هم ډېر وګړي د کتاب په قدر او ارزښت نه پوهېږي او له ګټو یې ناخبره دي. دوی په دې نه دي پوه چې کتاب هغه ښوونکی دی چې موږ ته وړیا او بې له کوم بدله زده کړه او معلومات را کوي. هیڅکله نه ستړی کېږي، تل موږ ته سترګې پر لار دی. هر وخت مو چې ورته مراجعه وکړه، په ورین تندي مو مني اوهر کلی راته وایي. هر څه چې ترې وپوښتو په نرمۍ او سړه سینه ځواب راکوي او په هغه څه چې نه پوهېږو، په ډېره مهربانۍ یې را زده کوي.

که په غور وګورو له کتاب څخه غوره شی او له کتابتون څخه غوره ځای په نړۍ کې نشته. که څوک غواړي چې د سوکاله او نیکمرغه ژوند خاوند شي، خپله موخه دې د کتابتون په ګوښه او د کتابونو په پاڼو کې ولټوي او پردې دې ډاډه اوسي چې ((پلټونکی موندونکی دی.))

کتاب د انسان لپاره ډېر ښه دوست او ملګری دی. له کتاب سره ملتیا او ملګرتیا، موږ د عادي وګړو له چاپېریال څخه د ډېرو لوړو افکارو او تصوراتو نړۍ ته بیا یې، له لوړو او سترو انسانانو سره مو ملګري کوي او د هغو له فکر او نظر څخه مو خبروي.

کله چې موږ کتابتون ته ننوځو، هلته په ښکاره یو څو الماری وینو چې کتابونه او پاڼې پکې ځای پر ځای شوي دي، نوره چوپه چوپتیا خپره وي او هېڅ غږ پکې نه اورېدل کېږي. کله چې کتاب را واخلئ او پاڼې یې واړوئ، هماغه غلی کتاب په خبرو پیل وکړي، په حیرانوونکې چټکتیا سره مو تر لیرې لیرې واټن پورې بیایي. یو نومیالي ایټالوي پوه ((پترارک)) د خپلو کتابونو او کتابتون په ستاینه کې له پند او خوند نه ډکې ډېرې خبرې لري. نوموړی وایي:

((زه یوه ډله ملګري او دوستان لرم چې شپې او ورځې له هغو سره تېروم. زما ټول دوستان د نړۍ نومیالي دي چې پېړۍ او زمان پکې خوندي دی. دغو دوستانو ډېر لېرې واټنونه وهلي او زما تر کوره رارسیدلي دي. دوی زما په زړه او سترګو کې ځای نیولی دی. هر وخت چې وغواړم، د هغو لیدو ته ورځم او چې هر چېرې ځم له ځان

سره یې بیایم. دومره خوږ ژبي دي چې څوک یې په خبرو نه مړیږي. د ژوند پټ رازونه راته څرګندوي. د تېرې زمانې د پند او خوندکیسې راته کوي او د انسانانو برخلیکونه رابښیي. په دې مې پوهوي چې څرنګه ژوند وکړم. چې خواشینی شم په خوږو او مالګینو خبرو مې د غم اور وژني او خوښوي مې. د نیکمرغۍ لارې رابښیي او هغو ته د رسېدو لپاره خپلې غوره لاربښوونې له ما څخه نه سپموي.

دا چې زما دا ملګري او دوستان ما ته څومره ګټې را رسوي، زما ژبه یې د ستایلو او شمېرلو وس او توان نه لري.))

کتاب هغه خواخوږی او مهربان ملګری دی چې خیانت، دوه مخې توب، کینه نه پېژني او په زړه کې یې رښتینوالی، وفا او لورینه په څپو ده. له خپل ملګري او مینه وال سره یې هیڅ کله هم خیانت نه دی کړی او نه یې کوي. کټ مټ د یوې هندارې په څېر، ښه او بد پکې بې له تېروتنې پخپل رنګ بریښي او خپل هر څه زموږ مخې ته ږدي. رښتیا رښتیا وایي، عمر یې تېر کړی، تجربې یې ترلاسه کړي، له هر بڼ نه یې رنګا رنګ ګلونه راټول او ښکلي غونچې یې ترې جوړې او زموږ مخې ته یې ایښي دي.

په یوازېتوب کې له موږ څخه نه غافله کېږي او نه پرېږدي چې زموږ یوه شیبه عمر هم بې ځایه تېر شي.

که زموږ د تېر ژوند تیاره ګوټونه روښانه کوي او د تېرو خلکو کړه وړه، ټولنیزې اړیکې، تدبیر او برخلیک راته بیانوي، د هغوی سربښندنې، علمي او ادبي غورځنګونه، ښېلا ښېلې موندنې، موجودې ستونزې او هلې ځلې زموږ د سترګو په وړاندې انځوروي چې موږ یې د خپل ژوند سرمشق وګرځوو او د عبرت درس ترېنه واخلو. کله بیا زموږ غوږونو ته د خوږ ژبو ویناوالو خوږې، له ساز او سوزه ډکې ویناوې زمزمه کوي او کله بیا د یو خوږ ژبي واعظ په توګه موږ ته د ژوند، پند او خوند خبرې کوي او په غوره افکارو مو د زړه او ذهن روزنه او پالنه کوي. دیني، اخلاقي او ټولنیزګټور معلومات او پوهه راته وړیا ډالۍ کوي.

خو په یاد ولرئ چې له ښو کتابونو سره مینه لرل د انسان لپاره د ډېرې ښې ملګرتیا

زیری دی. پام کوئ چې بې ځایه هوسونه مو د نفس د بې لارې کولو په لټه او تکل کې دي، یوازې او یوازې همدا ملګری مو له دغې تېروتنې، ښوییدنې او ناورین څخه ژغورلی شي. هره ورځ مو په بره بیایي، فکر او خیال ته مو د الوتلو او لوړ تللو واک او ځواک ورکوي، پوهه مو بشپړ وي، اخلاق مو غوره کوي او روح مو خوځنده او پیاوړی کوي.

د هر چا لپاره، خو په ځانګړې توګه د ځوانانو لپاره کتاب ډېر او تر هر څه غوره ملګری دی، نو له لوستلو یې ډډه مه کوئ. له ښه کتاب سره د ژورې مینې په پایله کې به پوه شئ چې دغه ملګری تاسو ته څومره ګټور دی.

د کتاب، مطالعې او کتابتون له دې دومره ښېګڼو او ګټو سره سره باید دې ته مو پام وي چې د کتابونو په مطالعه او ساتنه کې له ډېر غور او احتیاط څخه کار واخلو. کله چې غواړو د مطالعې په وسیله خپله معلوماتي پانګه زیاته او ذهني ځواک پیاوړی کړو، لومړی باید د لوستلو لپاره غوره، ګټور او باوري کتابونه وټاکو. په دویم ګام کې باید د مطالعې او لوستلو پر مهال خپل جسمي ځواک ته هم پوره پاملرنه وکړو. هسې نه چې په دې برخه کې په افراطي کړنې سره خپل جسم او ذهن له اندازې زیات ستړی او زیانمن کړو.

د متن لنډیز:

سره له دې چې اوس مهال کتابونه او کتابتونونه ډیر دي، او ورته لاس رسی اسانه دی، خو بیا هم ډېر داسې وګړي شته چې د کتابتون په ګټه او ارزښت نه پوهیږي. حال دا چې له کتاب څخه بل غوره او وفادار ملګری نشته.

کتاب هر وخت ستاسو د خدمت او استفادې لپاره چمتو دی. کتاب او مطالعه ډېرې ګټې لري، خو باید چې د مطالعې له پاره غوره او ګټور کتابونه انتخاب کړو او هم په مطالعه کې ډېر افراط ونه کړو چې جسم او ذهن ته مو زیان ورسیږي.

## فعالیتونه

۱ـ ځینې زده کوونکي دې په ترتیب سره د لوست یو یو پرګراف د ټولګي په وړاندې په لوړ غږ ولولي، نور دې غوږ ونیسي چې د کلمو سم تلفظ زده کړي.

۲ـ زده کوونکي دې په خپله خوښه د دغه لوست پنځه پنځه جملې په کتابچو کې ولیکي، بیا دې هغه د خپلو ټولګیوالو په وړاندې ولولي.

۳ـ متن دې په غور ولولي، په هغه کې دې صفتونه پیدا او په خپلو کتابچو کې دې ولیکي، بیا دې هغه د ټولګي په وړاندې په لوړ غږ ولولي. نور زده کوونکي دې هغه صفتونه چې د دوی په لست کې نشته پرې ورزیات کړي.

۴ـ زده کوونکي دې د کتابتون په څېر نورې ترکیبي کلمې د ((تون)) په یو ځای کولو سره بشپړې کړي:

کتاب + تون = کتابتون

روغ + =

درمل + =

پوهنه + =

ننداره + =

زېږن + =

وړک + =

۵ـ دې لاندې پوښتنو ته ځوابونه ووایئ:

- خنګه کولی شو خپله پوهه او معلومات زیات کړو؟
- تاسې د کوم ډول کتابونو له لوستلو سره مینه لرئ او ولې؟
- د کتابونو د ښه او خوندي ساتلو لپاره کومې لارې چارې غوره ګڼئ؟
- د کتاب لوستل او مطالعه څه ګټه لري؟

۶_ د لاندې جملو تش ځایونه په پنسل سره په مناسبو کلمو ډک کړئ:

- کتابتون د مطالعې ............. تر ټولو غوره ..................... دی.
- د کتاب مطالعه زموږ ............... او .............زیاتوي.
- زه د ښوونځي له ............... پرته نور ............... هم مطالعه کوم.

## کورنۍ دنده

که په خپل کور او یا د کوم نږدې خپلوان او ملګري په کور کې مو کتابونه وي، د هغو د ځینو کتابونو او د هغو د لیکوالو نومونه ولیکئ. د ښتو لوست په راتلونکي ساعت کې یې د ټولګیوالو په وړاندې ولولئ.




نېکمرغه هغه څوک دی چې له دوو شیانو څخه یو ولري:
یا ښه او غوره کتابونه یا داسې دوستان او ملګري چې کتابونه لري.
(ویکتور هوګو)

# د سولې نړۍ



- سوله او امن څه ته وايي؟
- که په کومه سیمه، ټولنه یا هېوادکې سوله او امن نه وي، وګړي به له څه ډول ستونزو سره مخامخ شي؟

سوله او امن د بشري ژوند د سوکالۍ او ټولنیزې پرمختیا لپاره ډېر ضروري دي. تر هغه چې په یوه ټولنه یا هېوادکې اوان دا چې که په نړیواله کچه په سیمه او نړۍ کې سوله نه وي، بشري ژوند به له ستر خطر او ګواښ سره مخامخ وي. که په یوه هېوادکې نا امني رامنځته شي، د نړۍ نور، په ځانګړې توګه ګاونډي هېوادونه ورڅخه په کلکه اغېزمن کېږي. دلته په دې لوست کې د ګل پاچا الفت یو شعر لولو چې پکې د سولې د ارزښت او اهمیت په هکله ژورې خبرې شوې دي.

هغه ورځ به بختوره وي هر ګوره
چې د سپینو زړونه تور نه وي له توره
کرکه نه وي یوله بله محبت وي
وروروليي سوله صفا وي ښه نیت وي
مرور خلک یو بل سره پخلا شي
نه چې غوښنه او چاړه هغه اودا شي
بشري دوستي قایمه په جهان وي
خوښ په سوله هم کافر هم مسلمان وي
نژادي توپیر هیڅ نه وي په دنیا کې
نه په شرق او نه په غرب نه امریکا کې
استقلال منلی حق د هر ملت وي
خو قایم په ملتو کې اخوت وي
دا څورنګه ساز آواز د هېواد ونو
شي یوه ارکسترا د ولسونو
د ګډ ژوند اصل و اساس اصلي منظور وي
جهاني عدل و انصاف صحیح دستور وي
هر ملت په هر نظر کې وي ښاغلی
که په هر رنګ و آیین کې وي راغلی
سړیتوب وي محترم په هر لباس کې
په زري جامو کې وي که په کرباس کې
داسې وساتي هر څوک خپل مسلکونه
چې ونکړي یو له بل سره جنګونه
ټول جهان د دوستۍ کور وي سر تر سره
د جنګ وېره شي له زړونو نه بهره



زور تړلی وي د سولې په قانون
مهار شوي مست اوښان وي د جنون
تویول د وینو شرم او پېغور وي
شرمنده ذلیل سر ټیټی ظلم زور وي
جګ شي هر چېرته د سولې بېرغونه
شي په سمه لار روان سیاستونه
د انسان زړګی له جنګ او جګړې تور شي
توره ماته شي او جوړ ورنه څه نور شي
خو له نه وي علامه د خجالت
په خدمت خولې کېدل وي شرافت
یو له بله محبت مهرباني وي
د ((الفت)) هیله او فکر جهاني وي
زه له تا ځنې ځاریږم ته له مانه
که جدا هم وي زما آیین له تانه

د متن لنډیز:

شاعر په شعر کې د سولې د نړۍ په زړه پورې انځور وړاندې کړی او د داسې یو چاپېریال هیله او غوښتنه یې کړې چې په ملي او نړیواله کچه سوله وروروليي وي. وګړي په خپل هېواد او هم په نړۍ کې سره پخلا وي. د جنګ جګړې ویره د خلکو له زړونو وتلې او یو له بل سره په سوله، خواخوږۍ او همدردۍ کې ژوند وکړي. له وینې تویولو څخه ژوره کرکه او سوله بیز ژوند ته لیوالتیا موجوده وي. د شاعر هیله د ټولې نړۍ د دولتونو ترمنځ سوله، وروري او برابري ده.

د شاعر پېژند گلوي:

گل پاچا الفت د میر سید پاچا زوی په ۱۲۸۸ هـ . ش . کال د لغمان په عزیز خان کڅ کې زېږېدلی و. د پښتو ټولنې علمي غړی و او څو کاله یې د دغه فرهنگي اداري د مشر په توگه هم دنده ترسره کړې وه. د پښتو ژبې پیاوړی لیکوال، شاعر او کره کتونکی و. په لس گونو علمي، ادبي ځانگړې کتابونه او په سلگونو مقالې یې په مطبوعاتو کې خپرې شوې دي.

د ۱۳۵۶ هـ . ش . د لیندۍ په ۲۶ نېټه مړ دی.

## فعالیتونه

۱ـ زده کوونکي دې په وار سره متن د ټولگي په وړاندې په لوړ غږ ولولي.

۲ـ یو زده کوونکی دې پر تخته له متن څخه د خپلې خوښې یو بیت ولیکي. بل زده کوونکی دې پخپله د هغه د معنا او تحلیل لپاره پورته شي.

۳ـ ځینې زده کوونکي دې د ټولگي مخې ته راشي د شعر د عمومي محتوا په اړه دې خبرې وکړي.

۴ـ دې لاندې پوښتنو ته ځوابونه ووایئ:

- سوله څه ته وایي؟
- امن او امنیت کومې نېکمرغۍ رامنځ ته کوي؟
- سوله څه گټې لري؟

## کورنۍ دنده

د جگړې د زیانونو په اړه که موکومه کیسه یا د چا په هکله کومه پېښه لیدلې او یا اورېدلې وي، د پښتو ژبې په بل درسي ساعت کې یې په ټولگي کې په وار سره خپلو ټولگیوالو ته ووایاست.

شلم لوست

# قيدونه




ژبه پر انسانانو باندې دالله ﷻ يوه ستره لورينه ده. له ژبې څخه په ټولنه کې د پوهونې راپوهونې لپاره د يوې اغېزمنې وسيلې په توګه کار اخيستل کيږي. ژبه له غږونو څخه جوړه شوې ده چې له غږونو څخه کلمې جوړيږي او کلمې بېلا بېل ډولونه لري، لکه: (نومونه، صفتونه، ضميرونه، فعلونه، قيدونه او نور.)

تاسې د مخه په يو لوست کې فعلونه وپېژندل، قيدونه هغه کلمې دي چې د فعل د پېښيدو څرنګوالی ښيي يا د هغه د پېښيدو ځای، يا يې څرګندتيا، اړوندتيا او داسې نورې ځانګړنې جوتوي. په دې لوست کې قيدونه درپېژنو.

قیدونه هغه کلمې یا ژبني توکي دي چې په یوه جمله کې د فعل معنا او څرنګوالی رابښيي. یا په بله وینا: قیدونه هغه ژبني عناصر دي چې د یو فعل د پېښېدلو څرنګوالی ښيي. همدا څرنګوالی د فعل د پېښېدو ځای یا مهال ټاکي او یا یې څرګندتیا، اړوندتیا، ټینګار او داسې نورې ځانګړنې څرګندوي.

### د قید ډولونه:

په پښتو ژبه کې قیدونه پر دوو ډولونو وېشل شوي دي: اصلي او غیر اصلي یا نه ګردانیدونکي او ګردانیدونکي. دلته یې هر ډول په ځانګړې توګه در پېژنو:

### الف، اصلي یا نه ګردانیدونکي قیدونه:

نه ګردانیدونکي قیدونه په پښتو کې دا لاندې ډولونه لري:

#### ۱ـ د زمان او مهال قید:

چې د وخت او مهال له مخې د یو فعل پېښېد نه ښيي، لکه:

اوس، دمخه، پخوا، وړاندې، سملاسي، وړمه ورځ، پرون ورځ، نن، سبا، دوخته، ناوخته، کله کله، کله ناکله، تل، هېڅکله، هره ورځ، سهار، غرمه، سږکال، پروسږکال، وړم کال، کال ته، بل کال ته، لمر خاته، لمر پرېواته او نور.

#### ۲ـ د ځای یا مکان قید:

د یو فعل پېښېد نه د ځای او چاپېریال له مخې څرګندوي، لکه: دلته، هلته، مخکې، وروسته، شاته، مخ ته، ښکته پورته، لاندې، باندې، اخوا، دېخوا، له لېرې، له نژدې، مخ ښکته، مخ پورته، له پاسه، له لاندې او نور.

#### ۳ـ د څرګندونې او ټینګاري قیدونه:

د یو فعل د پېښېدنې د څرګندتیا حالت یا ټینګار ښيي، لکه: په ښکاره، په پټه، په ځغرده، په ډاګه، په مېړانه، په نره، په خړو سترګو، په جګو سترګو، زړه نازړه، په ناسته، په ولاړه، په منډه، هرو مرو، خوشې په خوشې، څه ناڅه، لړو ډېر، په کلکه، په ټینګه، غاړه په غاړه او نور.

### ب ـ غیر اصلي یا ګردانیدونکي قیدونه:

په پښتو کې ځینې داسې قیدونه شته چې کله له لازمي فعل سره راشي، هلته بیا د جملې د فاعل لپاره ګردانیږي، خو که له متعدي فعل سره راشي، په دغسې حالت کې بیا د جملې د مفعول لپاره ګردانیږي.

د یادونې وړ ده چې دغه ګردان د جنس عدد او شخص له مخې تر سره کیږي.

**۱ـ له لازمي فعل سره:**

**ناتېره زمانه**

(مفرد) زه (نارینه) د رو ند د رو ند ګرځم.

(جمع) زه (ښځینه، مؤنث) درنده درنده ګرځم.

موږ (نارینه) درانده دراند ه ګرځو.

موږ (ښځینه) درندې درندې ګرځو.

**تېره زمانه**

زه (نارینه) درو ند ګرځیدم.

زه (ښځینه، مؤنث) درنده درنده ګرځېدم.

موږ (نارینه) دراند ه دراند ه ګرځېدو.

موږ (ښځینه) درندې درندې ګرځېدو.

همداسې تر پایه (ته، تاسې، دغه ....) کې هم ګردانېږي.

**یادونه**: په پورتنیو بېلګو کې فعل لازمي دی او قید (د روند ـ دروند) د جملې د فاعل لپاره ګردان شوی دی.

**۲_ له متعدي فعل سره:**

### ناتېره زمانه

(مفرد) حبيب ما (نارينه) پوخ پېژني.

حبيب ما (ښځينه) پخه پېژني.

(جمع) حبيب موږ (نارينه) پاخه پېژني.

حبيب موږ (ښځه) پخې پېژني.

### تېره زمانه

حبيب زه (نارينه) پوخ پېژندلم.

حبيب زه (ښځينه) پخه پېژندلم.

حبيب موږ (نارينه) پاخه پېژندلو.

حبيب موږ (ښځينه) پخې پېژندلو.

همداسې تر پايه (تاسې، دغه ...) هم گردانېږي.

د يادونې وړ ده چې په پورتنيو بېلگو کې فعل متعدي دی او قيد (پوخ) د جملې د مفعول لپاره گردان شوی دی.

د پورتنيو دوارو بېلگو څخه څرگندېږي چې ځينې قيدونه هم گردانېږي. په دې مفهوم کله چې فعل لازمي وي، قيد د جملې د فاعل لپاره د جنس او عدد له پلوه گردانېږي، يعنې بڼه يې بدلون مومي او کله چې د جملې فعل متعدي وي، نو هلته بيا قيد د جملې د مفعول لپاره د جنس او عدد له مخې گردانېږي.

**د متن لنډيز:**

قيدونه هغه کلمې دي چې په جملو کې د فعل د معنا څرنگوالی جوتوي.

قيدونه په دوه ډوله دي: يو ته يې اصلي يا نه گردانيدونکي قيدونه او بل ته يې غير اصلي يا گردانيدونکي قيدونه وايي. اصلي قيدونه هم ځانگړي ډولونه لري چې په هغو کې د زمان او مهال قيد، د ځای قيد او د تاکيد يا ټينگار قيدونه شامل

دي. گردانيدونکي يا غير اصلي قيدونه له لازمي او متعدي فعلونو سره په تېره او نا تېره زمانه کې راځي. په لازمي فعل کې د جملې د فاعل او په متعدي فعل کې د مفعول لپاره گردانيږي.

## فعاليتونه

۱ـ يو زده کوونکی دې د تختې پر مخ داسې يوه جمله وليکي چې قيد پکې راغلی وي. له بل زده کوونکي څخه دې وغوښتل شي چې په هغې کې قيد پيدا کـــړي او بل زده کوونکي دې هغه قيد په مناسبه جمله کې وکاروي.

۲ـ دې لاندې پوښتنو ته ځواب ووايئ:

- قيدونه څه ډول کلمې دي؟
- اصلي يا نه گردانيدونکي قيدونه کوم دي؟
- هغه کوم قيدونه دي چې له لازمي فعل سره راشي د فاعل لپاره او که له متعدي فعل سره راشي د مفعول لپاره گردانيږي؟
- ولې په جملو کې له فعل سره قيدونه راوړل کيږي؟

۳ـ هر زده کوونکی دې د خپل څنگ زده کوونکي ته د متن يوه برخه د املاء په توگه ووايي، بيا دې هغه متن دواړه دکتاب له مخې وگوري که څه غلطۍ ولري هغه دې سمې کړي.

۴ـ دا لاندې قيدونه په خپلو کتابچو کې وليکئ او په مناسبو جملو کې يې وکاروئ:

ژر ژر ورو ورو په وخت ناوخته شاته مخ ته

۵ـ له ځينو زده کوونکو څخه دې وغوښتل شي چې د ټولگي په وړاندې د قيدونو

د پېژندنې او اهمیت په هکله خبرې وکړي.

۶_ دا لاندې نیمګړې جملې په پنسل سره د قیدونو په لیکلو بشپړې کړئ:

- احمد پرون ښوونځي ته ........... روان و چې وغورځید.
- زه کوښښ کوم چې په ............. درشم.
- کله چې بازار ته ولاړې ............. دې څه ولیدل؟

## کورنۍ دنده

له لومړۍ څخه تر لسمې نومرې پورې زده کوونکي دې داسې متن ولیکي چې د وخت (زمان) قیدونه او له یوولسمې نومرې څخه تر شلمې پورې دې په متن کې د ځای (مکان) قیدونه او پاتې نور زده کوونکي دې داسې متن ولیکي چې د څرګندونې او ټینګار قیدونه پکې راغلي وي.



ژبه د یوه ملت ارزښتناک میراث بلل کېږي او د یوه هنري اثر په څېر ښکلې او پیچلې ده. ډېر ژر ورته زیان رسیږي، نو له دې امله همیشنۍ څارنې ته اړتیا لري.

(شوپنهاور)

# نشه ـستره بدمرغي!





- ایا تاسو کوم داسې نشه يي ليدلی دی چې دښه او نېکمرغه ژوند څښتن وي؟
- که چيرته مو په کلي او ګاونډ کې کوم نشه يي وي له هغه سره د نورو خلکو چلند څه ډول دی؟

ټول نشه يي توکي حرام دي او هغه څوک چې ورباندې اخته وي، نه يوازې داچې د هوسا ژوند څښتن نه وي، بلکې دکورنۍ او ټولنې د اوږو بار وي او خلک ورته په سپکه سترګه ګوري. نشه يي توکي ډول ډول وي چې يو له هغو څخه چرس دي. په دې لوست کې د چرسو د زيانونو په هکله ځينې څرګندونې لرو چې لولو يې.

ټول هغه شیان چې نشه راوړونکي دي، د اسلام سپیڅلی دین د هغو کارول حرام ګڼلي دي او دا حکم یې کړی دی چې باید ځانونه ورڅخه په کلکه وژغورو.

پر نشې باندې په روږدي کیدنې سره د بدن د کار او فعالیت ځواک کمزوری کیږي. روږدي کسان نه د دنیا چارې په سمه توګه سمبالولی شي او نه د اخرت، نه خپل حقونه پیژندلی شي او نه هم د نورو. دغه وګړي په ټولنه کې د خپلوۍ او دوستۍ اړیکې هم په مناسبه توګه پاللی او ساتلی نشي.

نشه یي توکي ډېر ډولونه لري چې له هغو څخه یو یې چرس دي، دلته یې پر څرنګوالي او زیانونو خبرې کوو:

چرس چې زیان رسوونکی نشه یي توکی دی، یوه تور بخونه شین رنګه ماده ده چې د بنګو بوټي د غوزې له نازکو پاڼو څخه لاس ته راځي.

له څېړنو څخه جوتیږي چې انسانان له ډېرې لرغونې زمانې څخه له دغه نشه راوړونکي توکي سره اشناوو او له هغه څخه یې د نشې او نورو موخو لپاره کار اخیستی دی. د دغې زیان رسوونکې مادې د پیدا کیدو اصلي ځایونه چین او اشور بلل شوي دي.

د چرسو د مادې ټول توکي نشه ییزه ځانګړنه لري. په ځانګړې توګه د تترا هایدرو کانا بینول کیمیاوي ماده ده چې د بنګو د بوټي یو مهم ترکیب دی او د نشې ډېر ځواک لري.

له روغتیایي څېړنو څخه جوتیږي چې دغه ماده د انسان حافظه کمزورې کوي، د بدن موازنه ګډوډوي، پر زړه او دماغ هم ډېرې ناوړې اغیزې لري او د اعصابو حجرې په کلکه ویجاړوي. همدغه ماده ډېره پیاوړې روږدې کیدونکې ځانګړنې لري چې پر نورو ډېر زیان رسوونکو نشه یي توکو، لکه هیرویین او کوکاکین باندې روږدي کیدو ته هم لارې برابروي.

موږ باید له هغو ټولو نشه ییزو توکو څخه چې د اسلام سپیڅلي دین یې کارول په غوڅه ناروا او حرام بللي دي، په کلکه ډډه وکړو. د دغو توکو په زیانونو خلک وپوهوو چې له کښت، استعمالولو او کار وبار څخه یې ځان وژغوري.

هغوی چې پرې روږدي دي، د نشې له عادت څخه د هغوی د خلاصون لپاره دې هراړخيزې ممکنې هلې ځلې وشي. د خير په دغه کار به مو دنيوي او اخروي نيکمرغۍ په برخه شي او موږ به د نشې له افت او زيان څخه د ژغورلې ټولنې خاوندان شو.

د متن لنډيز:

چرس چې د بنګو له بوټي څخه لاس ته راځي، يوه توريخونه شين رنګه ماده ده، يو ډېر زيان رسوونکی نشه ييز توکی دی. په دې نشه روږدي کسان له ذهني لحاظ کمزوري، سست او تنبل وي. په ټولنه کې ورڅخه وګړي ژوره کرکه لري، په سپکه سترګه ورته ګوري. په دوستۍ، خپلوۍ او ملګرتيا يې هم شرمېږي.

موږ بايد له ټولو نشو څخه په کلکه ځان وژغورو.

## فعالیتونه

۱_ څو زده کوونکي دې پخپله د متن يو يو پراګراف ولولي او نور زده کوونکي دې د کلمو سم تلفظ او د جملو ترکيب ته په غور پام وکړي.

۲_ پر تخته باندې ليکل شوي او معنا شوي لغتونه دې په کتابچو کې وليکي.

◆ لاندې لغتونه ولولئ او د اړوندو جملو په خالي ځايونو کې يې په پنسل وليکئ:

_ چرس _ چرسي _ حافظه _ ټولنه _ توکی

........... ورو ورو خپله ........... له لاسه ورکوي. نشه يان په ........... کې ګرانښت نه لري. ................. يو زيان رسوونکی ............ دی.

۳_ د متن له لوستلو څخه مو څه مفهوم واخيست، د ټولګيوالو په مخکې خبرې پرې وکړئ.

◆ د نشه يانو د ژوند په اړه څه فکر درسره پيدا شو؟

د ټولګیوالو په وړاندې پرې خبرې وکړئ.

۴ـ نشه يان ولې د بدن ځواک له لاسه ورکوي او د ټولنې د اوږو بار وي؟

◆ د اسلام سپیڅلي دین د څه لپاره نشه يي توکي منع کړي دي؟

◆ که ستاسو په کلي کې څوک نشه يي وي، له هغه سره به څنګه چلند وکړئ؟ خبرې پرې وکړئ.

۵ـ ټولګی دې په دریو ډلو و ویشل شي: یوه ډله دې د متن څو مفرد نومونه په حال زمانه کې وکاروي، بله ډله دې جمع نومونه په راتلونکې زمانه کې وکاروي او دریمه ډله دې د اوس (حال) زماني فعلونه په جملو کې وکاروي.

◆ یو څو زده کوونکي دې تختې ته پورته شي. د ګرامر د ارزښت په هکله دې خبرې وکړي.

۶ـ څو زده کوونکي دې په خپله خوښه پورته شي، د خپل کور کلي یا نورو سیمو د نشه يانو د خراب ژوند په هکله دې خبرې وکړي.

۷ـ یو څو زده کوونکي دې په وار سره تختې ته لاړ شي، د نشه يي توکو یو یو زیان دې پر تخته و لیکي.

۸ـ څو زده کوونکي دې په وارسره د تختې مخې ته راشي، د نشه يانو په واسطه د جرمونو د رامنځته کولو د علتونو په هکله دې خبرې وکړي.

◆ څو زده کوونکي دې په نشو باندې د ځوانانو د اخته کیدو په علتونو خبرې وکړي او د اړتیا په وخت کې دې ښوونکی مرسته وکړي.

## کورنۍ دنده

هر زده کوونکی دې په کور کې له مشرانو څخه د نشه يي توکو د زیانونو په هکله پوښتنې وکړي او بیا دې را ټول کړي معلومات د بلې ورځې په پښتو درسي ساعت کې خپلو ټولګیوالو ته و وایي.

# پټه خزانه







ایا تاسې د مخه د ((پټې خزانې)) نوم اورېدلی یا مو دا کتاب لیدلی دی؟

لکه څنګه چې پښتو ژبه ډېره لرغونتیا لري، دغسې یې ادب هم لرغونی دی، خو له بده مرغه چې زموږ د ژبې او ادب ډېر لرغوني لیکلي اثار د زمانې توپانونو له ځان سره وړي دي او ډېرې بېلګې یې اوس په لاس کې نه لرو. هغه څو بېلګې چې تر موږ رارسېدلې دي، هغه په ډېر ارزښتناک ادبي کتاب کې چې ((پټه خزانه)) نومېږي، خوندي شوي دي.

تاسې د ملي ارشیف په لوست کې د پټې خزانې د لاس کښلې یا قلمي نسخې په اړه ولوستل چې دغه مهم کتاب په ملي ارشیف کې خوندي دی، په دې لوست کې دغه کتاب درپېژنو.

پټه خزانه د پښتو ادبیاتو یو لرغونی کتاب دی چې محمد هوتک لیکلی دی. دغه لیکوال د هوتکي واکمنانو په دربار کې د منشي دنده درلوده او نوموړی کتاب یې په ۱۱۴۱_ ۱۱۴۲ هـ . ق . کال په کندهار کې لیکلی دی.

محمد هوتک د داؤد خان هوتک زوی په ۱۰۸۴ هـ . ق . کال د کندهار په کوکران کې زیږېدلی و. د خپل وخت پیاوړی عالم، لیکوال او شاعر و. د شاه حسین هوتک په دربار کې یې د منشي دنده درلوده او د دربار په مخورو او باوري کسانو کې شمېرو. له پټې خزانې پرته یې د ((خلاصة الطب)) او ((خلاصة الفصاحت)) په نومونو نور کتابونه هم لیکلي دي. د محمد هوتک ژوند تر ۱۱۵۰ هـ . ق . پورې باوري دی.



شاه حسین هوتک

محمد هوتک پټه خزانه د خپل وخت د فرهنګ پالونکي واکمن شاه حسین هوتک په حکم او غوښتنه تألیف او ترتیب کړې ده.

په دې هکله داسې لیکي:

((زه چې محمد هوتک یم او په اصل پښتون په کندهار کې اوسم، له ډېره ده چې په ویلو د داسې ویناوو بوخت یم او د شپې او ورځې مې هم دغه کار دی او دا ډېر وختونه تېر سول چې ما غوښته چې زه دې پښتنو شاعرانو ته تذکره وکاږم او د دوی احوال سره راټول کاندم، مګر زمانې ماته فراغ رانه کا او دا هیله مې په زړه کې وچه سوه، ځکه چې تر کندهار د ظلم او جفا تور تم پروت و، او هیڅ ارام نه درلود او فراغ.

ګاهي به مغلو چپاو ونه کړل او ګاهي به د ګرګین د ستم سوران و.

اوس چې حق تعالی موږ خلاص کړو له هغو ظلمو څخه او فارغ سوه زړونه زموږ او زموږ ملک حاجي میرخان علیه الرحمه، دوی له کندهاره وایسته او پښتانه یې د دوی له جوره ازاد کړل نو زما زړه فارغ سو له اندوهه، او قلم مې راواخیست، هغه وخت چې زما له ارادې خبر سو زموږ د پښتونخوا د سترګو تور، امام المسلمین، و ابن قال الرفضة والکافرین، شاه حسین، ادام الله دولته الی یوم الدین.

بیت

د پښتو پادشاه حسین هوتک
په ملکانو کې دی دی لوی ملک
د حاجي میر خان غښتلی زوی ګرندی
خالقه تل دې وي ځلان دا غمی

نو زه یې وغوښتلم دربار ته، او ماته یې تشویق وکا، او الطاف یې ښکاره کا چې دا خپله اراده پوره کاندم، او د پښتنو شاعرانو حال سره راټول کاندم".

د پټې خزانې د کتاب قلمي نسخه په ۱۳۲۲ هـ . ش . کال تر لاسه او د هغې له مخې لومړی ځل په ۱۳۲۳ هـ . ش . کال د پښتو ټولنې له خوا چاپ او خپره شوه او بیا وروسته د بېلا بېلو ادارو له خوا څو ځلې له دري ژباړې سره او هم په ځانګړې توګه چاپ شوې ده.

په دې ارزښتناک ادبي کتاب کې د (۵۰) تنو شاعرانو او لیکوالو د ژوند حالات او د شعر بېلګې خوندي دي.

د کتاب لیکوال دا کتاب په دریو برخو وېشلی او هرې برخې ته یې د ((خزانې)) نوم ورکړی دی.

په لومړۍ خزانه کې یې دپښتو ژبې دا لاندې (۲۲) تنه شاعران راپېژندلي چې د لیکوال له زمانې څخه د مخه، ان په دویمې هجري پیړۍ پورې اړه لري.

بابا هوتک، شیخ ملکیار، اسماعیل، خرښبون، شیخ متي، امیر کروړ، شیخ اسعد سوري، ښکارندوی، ابو محمد هاشم سرواني، شیخ تیمن، شیخ بستان بړیځ، شیخ

رضي لودي، نصر لودي، شيخ عيسٰی مشوانی، سلطان بهلول لودي، خليل خان نيازی، خوشحال خان ختک، زرغون خان، دوست محمد کاکړ، عبدالرحمان بابا، شيخ محمد صالح او علي سرور لودي.

د کتاب په دويمه خزانه يا برخه کې د دې لاندې (۲۱) تنو شاعرانو او ليکوالو پيژندنه راغلې چې ټول د کتاب د ليکوال د زمانې دي:

ملاباز محمد توخی، شاه حسين هوتک، ملا زعفران، محمد يونس خان (خيبری)، محمد گل مسعود، عبدالقادر خان (ختک)، بهادر خان، ملا محمد صديق، ملا پير محمد مياجي، اللهيار افريدی، بابوجان بابي، ريدي خان مومند، ملا محمد عــــادل بړېڅ، محمد طاهر، محمد عمر، محمد اياز نيازی، ملا محمد حافظ بارکزی، نصرالدين خان اندړ، ملا نور محمد غلجی، حافظ عبدالطيف اڅکزی او سيدال ناصر.

د پټې خزانې په درېمه خزانه کې د (۶) تنو ښځينه شاعرانو پيژندنه راغلې ده:

نازو توخي، حليمه حافظه، نيکبخته، بي بي زينب، زرغونه او رابعه.

د کتاب په پای کې ليکوال محمد هوتک د خپل پلار ((داؤد خان هوتک)) او خپله پېژندگلوي د شعر له يوې بېلگې سره راوړې ده.

((پټه خزانه)) د پښتو ادب يو ډېر ارزښتناک ادبي کتاب دی چې د هغه په تر لاسه کېدو د پښتو ليکلی منظوم ادب د دويمې هجري پيړۍ لومړۍ نيمايي ته رسيدلی دی، بايد چې هغه تر لاسه او په ډېر غور يې ولولو چې د پښتو ژبې د پخوانيو شاعرانو له ژوند پيښو او شعرونو سره اشنا شو.

د متن لنډيز:

پټه خــــــزانه د پښتو ژبې او ادبياتو يو ډېر ارزښتناک کتاب دی چـــې محمد هوتک په ۱۱۴۱ _ ۱۱۴۲ هـ . ق . کال د فرهنگ پالونکي واکمن شاه حسين هوتک په حکم او غوښتنه تاليف کړی دی، لومړی ځل په ۱۳۲۳ هـ .

ش . کال چاپ شوی دی. په دې کتاب کې ليکوال (۵۱) تنه نارينه او ښځينه شاعران او ليکوال راپيژني چې هغوی څه د لرغونو زمانو او څه د کتاب د ليکوال معاصرين دي. په پخوانيو شاعرانو کې امير کروړ هم شامل دی چې ددويمې هجري پيړۍ په لومړيو کې يې ژوندکاوه. نوميالی واکمن او پياوړی شاعر و.

## فعاليتونه

۱ـ ځينې زده کوونکي دې د متن له پيل څخه تر پای يو يو پراګراف د ټولګي په وړاندې په لوړ غږ ولولي.

۲ـ زده کوونکي دې هغه ستونزمن لغتونه او د هغو معنا په خپلو کتابچو کې وليکي چې ښوونکي د درس د تشريح او توضيح په مهال پر تخته ليکلي دي.

◆ په کتابچو کې ليکلي لغتونه دې په مناسبو جملو کې وکاروي.

۳ـ زده کوونکي دې د ټولګي مخې ته راوبلل شي چې د پټې خزانې د کتاب په اړه خبرې وکړي.

۴ـ دا لاندې پوښتنې ځواب کړئ:

◆ پټه خزانه ولې د پښتو ادبياتو ډېر ارزښتناک کتاب ګڼل کېږي؟
◆ پټه خزانه چا، دکوم واکمن په غوښتنه او سپارښتنه ليکلې ده؟
◆ په پټه خزانه کې څو تنه نارينه او څو تنه ښځينه شاعران پيژندل شوي دي؟
◆ پټه خزانه په څو برخو وېشل شوې او هرې برخې ته کوم نوم ورکړل شوی دی؟

۵ـ زده کوونکي دې په متن کې راغلي خاص نومونه او صفتونه په خپلو کتابچو کې وليکي.

◆ په دې لاندې جملو کې راغلي فعلونه په کومو زمانو پورې اړه لري:
◆ محمد هوتک پټه خزانه په ۱۱۴۱ـ ۱۱۴۲ هـ . ق . کال ليکلې وه.

- پټه خزانه د پښتو ادبیاتو ارزښتناک اثر دی.
- موږ به د پټې خزانې کتاب پیدا او هغه به ولولو.

۶_ د لاندې جملو تش ځایونه په مناسبو کلمو په پنسل ډک کړئ:

- په پټه خزانه کې ......... تنه شاعران معرفي شوي دي.
- محمد هوتک له پټې خزانې پرته د .......... او .......... په نومونو دوه نور کتابونه هم لیکلي دي.
- پټه خزانه په ....... برخو یا ............ وېشل شوې ده.

۷_ څو زده کوونکي دې د پټه خزانې د ارزښت په هکله خبرې وکړي.

- څو زده کوونکي دې د پښتو ژبې د لرغونو اثارو د کمښت اصلي لاملونه خپلو ټولګیوالو ته ووايي او که اړتیا وه ښوونکی دې مرسته وکړي.
- څو زده کوونکي دې د شاه حسین هوتک د ادبي خدمتونو په هکله رڼا واچوي، د اړتیا په وخت کې دې ښوونکی مرسته وکړي.

## کورنۍ دنده

له لومړۍ څخه تر لسمې نومرې پورې زده کوونکي دې په کور کې د لوست له متن څخه د لومړۍ خزانې د پخوانیو شاعرانو نومونه، له یوولسمې نومرې څخه تر شلمې پورې د دویمې خزانې د شاعرانو نومونه او پاتې زده کوونکي دې د دریمې خزانې د ښځینه شاعرانو نومونه په خپلو کتابچو کې ولیکي. بله ورځ دې د پښتو لوست په ساعت کې هغه د ټولګیوالو په وړاندې ووايي.

# مېرمن مستوره شال




- د اوسنیو ښځینه شاعرانو او لیکوالو له ډلې څخه څوک پېژنئ؟
- دکومو ښځینه شاعرانو او لیکوالو د نظم او نثر کوم کتاب مو لوستلی دی؟

موږ د پښتو ادب په اوسنۍ دوره کې ډېرې ښځینه نومیالۍ شاعرانې او لیکوالې لرو چې په خپلو اثارو یې د پښتو ادبي پانګه درنه او بډای کړې ده.
له دغو نومیالیو ادبي څېرو څخه یوه هم مېرمن مستوره شال ده چې دلته یې درپېژنو.

د پښتو ادبیاتو د اوسنۍ دورې په ښځینه شاعرانو او لیکوالو کې مېرمن مستوره شال د خپل پیاوړي ادبي ذوق او استعداد له امله د لوړ نامه او شهرت څخه برخمنه ده.

نوموړې د کونړ ولایت د اسمار ولسوالۍ په شال نومي کلي کې په ۱۳۰۹ هـ . ش. کال سترګې نړۍ ته وغړولې. پلار یې سید عبدالرزاق نومېده چې په شال پاچا مشهور او د کونړ د ساداتو له روحاني کورنۍ څخه و.

مستوره شال شپږ کلنه وه چې دلیک لوست زده کړه یې پخپله کورنۍ کې پیل کړه. د مروجو دیني او ادبي علومو ډېر کتابونه یې له خپل پلار څخه لوستل. د همدغو زده کړو په بهیر کې یې د ځانګړي ادبي ذوق له امله د پښتو او دري ژبو د نظم او نثر ډېر نوماند اثار مطالعه کړل. همدغې مطالعې په هغې کې لومړی د شعر ویلو احساس او جذبه راوپاروله او په شعر ویلو یې پیل وکړ. وروسته یې بیا د لنډو ادبي ټوټو او مقالو په لیکلو خپل قلمي ځواک و ازمویه.

کله چې مستوره شال د هېواد پلازمېنې (کابل) ته راغله، فرهنګي چاپیربال او د ښځو نوي رامنځته شوي غورځنګ یې پر ذهن او فکر ژوره اغېزه وکړه. د دې شعر او ادب ته یې نوی رنګ او بڼه ورکړه. شعرونه او نثرونه یې په مطبوعاتو کې خپرېدل او ورو ورو د یوې روښانفکرې شاعرې او لیکوالې په توګه را ځرګندېدله او پېژندل کېدله. په شعرونو کې یې ډېر لوړ خیالونه او ژورې معناګانې رانغښتې دي، دا بیتونه یې لولو:

ستا د ښکلا مخ ته چې سپوږمۍ ورمخامخ شوله<br>
ژر یې ښایست ځکه د ذوال لمنه ونیوه<br>
ستا د تبسم غوټۍ ته ګل سبا کې وویل:<br>
ستا په غوړېدو ما د جمال لمنه ونیوه

مېرمن مستورې پر شاعرۍ او لیکوالۍ سربېره د هېواد په معارف کې د ښوونکې سپېڅلې دنده درلوده. له دې لارې یې څو کاله د هېواد د اولادونو، په ځانګړې توګه د نجونو، په ښوونه او روزنه کې د ستاینې وړ دنده ترسره کړې ده.

نوموړې د ښوونکې د دندې ترڅنګ په کابل راډیو کې د ویاندې په توګه هم کار کاوه.

سربېره پر دې يې په علمي، ادبي غونډو او سيمنارونو کې هم ونډه اخيستله. شعرونه او مقالې يې پکې لوستلې. دا هغه مهال و چې موږ د هېواد په کچه د فرهنګي فعاليتونو په ډګر کې څو د ګوتو په شمېر ښځينه ليکوالې او شاعرانې درلودې چې مېرمن مستورې ته هم دغه وياړ ور په برخه دی. هغه لومړنۍ شاعره ده چې د ((پرونی)) په نوم يې د شعر ټولګه چاپ او د ادب مينه والو ته وړاندې کړه.

مېرمن مستوره شال له ۱۳۶۰ هـ . ش . راوروسته کلونو کې د کابل راډيو د هنر او ادبياتو په څانګه کې په دنده وګومارل شوه. د ۱۳۷۱ هـ . ش .کال تر لومړيو يې دا دنده د زړه په مينه ترسره کړه. په هېواد کې د کورني اړو دوړ او جګړو له پيل کېدو سره سم پېښور ته په کډه شوه.

هلته يې په جلاوطنۍ کې د زړبوډۍ په حالت کې د څو کاله ستونزمن او له کړاو ډک ژوند په بهير کې هم خپلو ادبي او فرهنګي فعاليتونو ته په ډېره مينه دوام ورکړ، په علمي او ادبي غونډو کې به يې ګډون کاوه. ليکنې او شعرونه به يې په مطبوعاتو کې خپرول او له فرهنګي ادارو سره يې ښې اړيکې درلودې.

نوموړې ډېره موده په پېښور کې د افغانانو لپاره د لومړنيو زده کړو په اداري ((بېفير)) کې په دنده بوخته وه. د دغې ادارې د روغتيايي زده کړو په څانګه کې يې د مور او ماشوم د ساتنې، د ښوونيز او روزنيز پروګرام اساسي روغتيايي پيغامونه په پښتو ژبه منظومول. په دې لړ کې يې ډېر زيات پيغامونه د شعر په خوږه او رنګينه، خو ډېره ساده ژبه واړول. په خپل غږ يې د کلمه او ثبت کړل. له همدغو منظومو پيغامونو څخه د دغه روزنيز پروګرام په پرمخبيولو کې ډېره اغيزناکه استفاده کېدله.

مستوره شال يوه حساسه او دردمنه شاعره وه. په شعرونو کې يې که له يوې خوا ملي احساسات او جذبات په څپو دي، نو له بلې خوا پکې زموږ د هېوادوالو د ټولنيز ژوند دردونه او ناخوالې، د ناوړه دودونو غندنه او د ملي وياړونو د ستاينې ډېرې په زړه پورې ښېلګې په سترګو کېږي. زموږ دغې نوميالۍ شاعرې په خپل هېواد او ټولنه کې د ښځو په محروميتونو او د هغو په وړاندې د ټولنيزې نابرابرۍ په شته والي ډېرې

اوښکې توی کړې دي. کله کله بیا د شعر په خوږه او رنګینه ژبه وګړي د غفلت له درانه خوبه راویښوي او ځوانان په ډېره مینه د وطن د ننګ ډګر او سنګر ته ورولي:

دا خو زه یم چې راویښ کړم له درانه خوبه قومونه
په سپیره دښته کې جوړ کړم د جذباتو محشرونه
ایینه د واړه قام یم ورته ښیمه عیبونه
لکه څاڅکي د باران هومره ډېر ډېر پیغورونه
ته مې وپیژنه څوک یم سرګردان د بحرو بر یم
بل څه نه یمه انسان یم سوز او ساز لرم شاعر یم

دغه نومیالۍ شاعره او لیکواله د ۱۳۷۷ هـ . ش . د سنبلې په نهمه د ورپېښې ناروغۍ له امله په پېښور کې وفات شوه. جنازه یې هېواد ته راوړل شوه او د کونړ ولایت د شینکوړک په کلي کې په خپله پلارنۍ هدېره کې خاورو ته وسپارل شوه.

د مستورې شال په چاپ شوي شعري ټولګې ((پرونی)) سربیره ډېر زیات شعرونه او نثري لیکنې په مطبوعاتو کې خپرې شوي دي. که راټول شي څو ټولګې ترې جوړېدای شي. دلته یې د شعر یوه بشپړه بېلګه را اخلو.

## د وینو څاڅکي

څه ژړا فریاد دی هر خواته په جهان کې نن
پاتې طراوت نه دی یو ګل ته ګلستان کې نن
ورک اثر د اوښکو د یتیم دی وینې ژاړي تل
اخلي ظالمان خوند د مظلوم اه و فغان کې نن
وریځ د اوسیلو وینم خوره د شین اسمان په مخ
وینې د شهید دي راتویېږي په باران کې نن
سوز او عاطفه سینو کې نشته زړونه سخت شولو
ځکه اثر ورک شو د خوږو نغمو بوستان کې نن
اوښکې د بیوزلو دي الماس د ځینو غاړو کې

وينې د مظلومو دي زيور ګوهر ګرېوان کې نن
اور د تجاوز لمبې وهي د خوار غريب په سر
وينم دوزخونه د سره اور ډک په جهان کې نن
زه يم همنوا د بلبلانو د چمن ځکه
ښکاري مې د زړه وينې د شعر ګلستان کې نن

د متن لنډيز:

مېرمن مستوره شال يوه نوميالۍ پښتنه شاعره او ليکواله وه چې په کونړ کې زېږېدلې، لويه شوې او په خپلې کورنۍ کې يې د ديني او ادبي علومو زده کړې کړې دي. بيا يې د ادبي ذوق له امله شاعري او ليکوالي پيل کړې. په معارف کې د ښوونکې او کابل راډيو کې يې د وياندې او ادبي پروګرامونو د چلوونکې په توګه هم دنده ترسره کړې وه. په ۱۳۷۷ هـ. ش. کال يې له ژوند سترګې پټې کړې دي. د ((پړونې)) په نوم يې د شعرونو ټولګه چاپ او ډېرې ليکنې او شعرونه يې په مطبوعاتو کې خپاره شوې دي.

## فعاليتونه

۱ـ ځينې زده کوونکې دې په متن کې د خپلې خوښې يو يو پراګراف ولولي.

۲ـ ځينې زده کوونکې دې د ټولګي مخې ته راوبلل شي چې د مېرمن مستورې د وروستي شعري بېلګې مفهوم پخپلو الفاظو کې نورو ټولګيوالو ته ووايي.

۳ـ دې لاندې پوښتنو ته ځواب ووايئ:

- مستورې شال خپلې زده کړې چېرې او له چا نه کړې وې؟
- مېرمن مستورې کله شاعري او ليکوالي پيل کړې وه؟

◆ د هغې په لیکوالۍ او شاعرۍ څه شي ډېره ژوره اغېزه وکړه؟

۴_ زده کوونکي دې متن په غور ولولي په هغه کې دې خاص نومونه، صفتونه پیدا او پخپلو کتابچو کې ولیکي.

۵_ زده کوونکي دې په لاندې جملو کې تش ځایونه په مناسبو کلمو ډک کړي:

◆ مستوره شال ...................... وه چې د لیک لوست زده کړه یې په خپله ....... کې پیل کړه.

◆ مستورې په ........ کې د ویاندې په توګه هم ......... کاوه.

◆ مستوره په ............. په پېښور کې .......... شوې ده.

## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې په کور کې د هغې اوسنی شاعرۍ او لیکوالۍ په اړه چې دوی یې پېژني، معلومات ولیکي، د بلې ورځې په پښتو درسي ساعت کې دې یې د ټولګیوالو په وړاندې ولولي.

> ادیب (شاعر او لیکوال) د ټولنې عادي وګړی نه دی، هغه څه چې په ورځني ژوند کې پېښېږي، یا هغه ناخوالې، ستونزې او ربړې چې ټولنه ورسره مخامخ ده، د شاعر او لیکوال پر احساس او عاطفه ژور اغېز کوي. کله چې د خپلې پوهې او استعداد په قوت له هغې څخه کومه منطقي نتیجه اخلي او بیا یې د خپل تخیلي ځواک په ملتیا په مناسبو الفاظو د شعر یا ادبي نثر په کوم قالب کې نورو ته وړاندې کوي، همدغه ادب دی.
>
> ((ادب پوهنه))

ځلرویشتم لوست

# د ماینونو شکمنې سیمې



■ داسې شیان پیژنئ چې په چاودلو یې مرګ او ژوبله رامنځته کیږي؟

زموږ په هېواد کې څه د پاسه درې لسیزې جنګ جګړې د بې شمېره زیانونو او بدمرغیو سبب وګرځېدې. په بېلا بېلو وسلو او وسیلو د مرګ ژوبلې ډېرې ناوړې او زړه بوږنوونکې صحنې رامنځته شوې چې یوه له دغو وسلو او وسیلو څخه ماینونه او ناچاودیدونکې توکي دي. په دې لوست کې د هغو د پیژندنې په ترڅ کې د شته والي په احتمالي سیمو او ځایونو هم بحث کوو.

زموږ په هېواد کې د درې لسیزو جنګونو په بهیر کې د جګړې ښکیلو خواو و یا د خپل ځان د ساتنې او یا هم مقابل لوري ته د ځاني او مالي زیان رسونې په موخه له ماینونو څخه د یوې ډېرې اغیزناکې او کاري وسیلې په توګه کار اخیستی دی.

ماینونه په دوه ډوله دي:

د پرسونل ضد ماینونه او د وسایطو ضد ماینونه.

**د پرسونل ضد ماینونه**: هغه ځانګړي چاودیدونکي توکي دي چې له اوسپنې، پلاستیک او یا لرګي څخه په بېلا بېلو بڼو، لکه: د لوبو شیان، قلمونه، راډیو ګانې اونورو جوړ دي اوپه منځ کې یې نا چاودي مواد شته چې هغه د بدن د غړي د فشار په وسیله چوي او مرګ ژوبله رامنځته کوي.



**د وسایطو ضد ماینونه**: دا ماینونه هم په بېلو بېلو بڼو جوړ دي چې د وسایطو، لکه موټرو، لاریو، ټانکونو او نورو د فشار په نتیجه کې چوي، د ځاني اومالي زیان رسولو سبب ګرځي.



د ماینونو پېژندل ډېر ستونزمن کار دی، ځکه چې زیاتره په ځمکه کې ښخ او ځینې بیا د عادي استعمالو ونکو شیانو په څېر دي، نو ځکه په دې اړه ډېر غور او احتیاط پکار دی.

دلته د دغه پټ خطرناک دښمن د شته والي احتمالي سیمې درپېژنو او د ناچاودو توکو په اړه هم معلومات درکوو.

ماینونه په عام ډول د ځانګړو سیمو د ساتنې، لکه پوځي پوستو او مرکزونو ته د دښمن د تللو د مخنیوي لپاره او یا د مقابل لوري د ډارولو او ویرولو لپاره کارول کېږي، خو د ناچاودو توکو پېژندنه بیا هغومره ډېره ستونزمنه نه ده، ځکه زیاتره د ځمکې پر سر پراته دي. دا هغه مهمات دي چې د جګړو په مهال چاودلي نه دي. په دې کې توغندي، د بمونو پارچې، لاسي بمونه، د ټانګ، ټوپکو او ماشیندارو ګولۍ او نور شامل دي.

ماینونه او ناچاودي توکي زیاتره په دې لاندې ځایونو کې پیدا کېږي:

- په هغو لارو او سړکونو کې چې تګ پرې ډېر نه کېږي.
- د عمومي لارو او سړکونو پر څنډو.
- د موټر د ګرځېدو، راګرځېدو په سیمو کې.
- د پلونو او پلچکونو دننه او شاوخوا ځایونو کې.
- ړنګو او ویجاړو شویو ودانیو دننه او شاوخوا ځایونو کې.
- ړنګو شوو ودانیو ته د ورتللو او د ننوتو په لارو او د خونو په درشلونو او کونجونو کې.
- د څاګانو او د اوبو د نورو سرچینو دننه او شاوخوا برخو کې.
- د پوځي پوستو او ویجاړو شویو وسایطو په شاوخوا کې.
- په هغو سمڅو او کندو کې چې د جګړې پر مهال د پټېدو د ځای په توګه کارول شوي دي.

نو موږ ته لازمه ده چې هیڅکله ناپېژندل شوو شیانو ته لاس ور نه وړو، ناپېژندل شوي سیمونه او مزې کش نه کړو او د ناپېژندل شویو شیانو په خوا کې ډبرې او نور

شیان وانه چو و. که چیرې مو په یادو شو و سیمو کې د ماینونو نښې نښانې ولیدې او یا په کومه سیمه کې په انسان یا څاروي وچاودېد، په نږدې سیمه کې د ماین پاکولو د موسسې چارواکو ته خبر ورکړئ، د هغوی ګمارلي کسان د ماینونو سیمې ته راځي او په هغه ساحه کې تیږې په سور رنګ رنګوي او که تېږې نه وي نورې داسې نښه نښانې بږدي چې په سره رنګ رنګ شوې وي.

د ماین پېژندونکو او ایستونکو له خوا په سور رنګ د تېږو او نښو رنګول دا معنا لري چې په دې سیمه کې د مرګ او وینو د تویېدو خطر موجود دی او تګ راتګ په کې بند شوی دی، نو باید داسې سیمو ته ورنشو.

کله چې د ماین ایستونکو له خوا سیمه پاکه شي هماغه په سور رنګ رنګ شوې تیږې او نښانې په سپین رنګ رنګوي، سپین رنګ دا معنا لري چې په دې سیمه کې د ماین د شته والي خطر له منځه تللی دی او هر څوک په کې ګرځېدای شي او کار کولی شي.

ماین د ژوندانه دښمن دی، له دغه دښمن څخه نه یوازې دا چې ځان وساتو، بلکې د هغه د له منځه وړلو لپاره باید فني کسانو ته خبر ورکړو.

د متن لنډیز:

زموږ د هېواد په ګوټ ګوټ کې د درې لسیزو جګړو په بهیر کې د جګړې ښکیلو خواوو له مقابل لورې څخه د ځان ژغورنې او یا هغو ته د ځاني او مالي زیان رسونې په موخه ماینونه د یوې اغېزناکې وسیلې په توګه کارولي او ښخ کړي دي. بېلا بېل ډولونه لري. ځینې د پرسونل ضد ماینونه او ځینې د وسایطو ضد ماینونه نومېږي. همدارنګه ناچاودي توکی هم شته، نو موږ باید دا پټ دښمن وپېژنو او له هغو ساحو څخه چې پورته په متن کې ښودل شوي، له ورتګ څخه په کلکه ډډه وکړو او هم ناچاودو توکو ته له لاس وروړلو څخه ځان وژغورو.

## فعالیتونه

۱ـ زده کوونکي دې متن لومړی په چوپتیا سره ولولي. بیا دې ځینې زده کوونکي د دې متن یو یو پراګراف په لوړ غږ ولولي.

۲ـ زده کوونکي دې په دوو ډلو وویشل شي: یوه ډله دې په متن کې د ماینونو او ناچاودو توکو د بېلا بېلو ډولونو نومونه لست کړي او بله ډله دې د ماینونو او ناچاودو توکو ساحې لست کړي. د یوې ډلې استازی دې د ماین یا ناچاودو توکو نومونه پر تخته ولیکي او د بلې ډلې څو تنه دې د هغو په هکله څرګندونې وکړي. بیا دې د بلې ډلې یو استازی د ماینونو ساحې یوه یوه پر تخته ولیکي، د بلې ډلې څو زده کوونکي دې د هغو په باب معلومات وړاندې کړي.

۳ـ لاندې پوښتنې ځواب کړئ:

- د ماینونو او ناچاودو توکو له لوست څخه مو څه مفهوم واخیست؟
- له ماینونو او ناچاودو توکو څخه څرنګه ځان ژغورلی شو؟
- ماینونه کوم کوم ډولونه لري؟
- ماینونه په کومو ځایونو کې پیدا کېږي؟

۴ـ زده کوونکي دې پخپلو کتابچو کې لاندې جملې ته پراختیا ورکړي او بیا دې هغه په خپل وار سره د ټولګي په وړاندې ولولي:

- ماینونه ډېر خطرناک دي، ځکه چې په چاودلو سره یې ... .

۵ـ زده کوونکي دې متن ولولي، په هغه کې راغلي صفتونه دې په نښه او په مناسبو جملو کې دې وکاروي. بیا دې هغه په خپل وار د ټولګیوالو په وړاندې ووایي.

- زده کوونکي دې متن ولولي، په هغه کې دې صفتونه پیدا او په خپلو کتابچو کې دې ولیکي او بیا دې څو تنه هغه د خپلو ټولګیوالو په وړاندې ووایي.

۶ـ په کومو سیمو کې چې د ماین ایستونکو له خوا په سره او سپین رنګ تیږې

رنګ شوې وي، دا نښې د څه معنا لري؟

- که چېرې په کومه سیمه کې د ماینونو د شته والي نښې تر سترګو شي، څه باید وکړو؟

## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د خپل کور کلي، کوڅې او یا سیمې له مشرانو څخه د ماین چاودنې د کومې پېښې په اړه معلومات ترلاسه کړي او هغه دې د بلې ورځې په پښتو ساعت کې د نورو ټولګیوالو په وړاندې ولولي.



پنځه ویشتم لوست

# باميان يوه لرغونې تاريخي سيمه





- تاسې د هېواد کومو ولايتونو ته تللي ياست؟
- په کوم ولايت کې موزيات لرغوني تاريخي اثار او ځايونه ليدلي دي؟

زموږ هېوادګران افغانستان اوس ۳۴ ولايتونه لري چې هر يو يې د هېواد د يوې مهمې برخې په توګه له ځانګړي اقتصادي، ټولنيز، لرغوني تاريخي او فرهنګي ارزښت څخه برخمن دی. يو له دغو ولايتونو څخه د باميان ولايت دی چې په دې لوست کې يې درپيژنو.

باميان د هېواد په مرکزي برخه کې پروت مشهور ولايت دی. د دې ولايت تاريخي لرغونتيا ډېرې وړاندې زمانې ته رسيږي. تاريخي اثار يې د لرغوني اريايي مدنيت استازيتوب کوي. مشهور چينايي گرځندوی هيوان تسنگ په پنځمه ميلادي پيړۍ کې دغې سيمې ته ورغلی او په ((چينايي يونليکونه)) نومي کتاب کې يې د هغه د لرغونو اثارو او جغرافيوي ځرنگوالي په باب په زړه پورې څرگندونې کړې دي. باميان د غوربند له لارې له کابل او د حاجي گگ او بند امير په وسيله د شمالي ولايتونو او همدارنگه د لعل د سيند په واسطه له هرات او ارزگان سره گډه لاره لري.

په دغه ولايت کې اوس علمي او فرهنگي بهير د چټکې ودې او پرمختيا په حال کې دی. د ولايت په مرکز، بېلا بېلو ولسواليو او ليرې کليوالو سيمو کې د نجونو او هلکانو له لومړنيو او ثانوي ښوونځيو سربېره په مرکز کې يو پوهنتون هم لري چې پکې په زرگونو زده کوونکي او محصلين په زده کړو بوخت دي. چاپي خپرونې (مجلې او اخبارونه) او نورې ډله ييزې رسنۍ راډيويي او تلويزيوني خپرونې هم لري.

په دې ولايت کې ډېر تاريخي اثار او د ليدلو وړ ځايونه شته. تر ټولو مهمې يې د بودا مجسمې دي چې اوس ړنگې شوې دي، د ضحاک او غلغلې ښار نښې نښانې، بند امير او د بوديزم د دورې ډول ډول سيمې او داسې نور لرغونې اثار دي چې د ډېر لرغوني بډای فرهنگي او تاريخي اهميت څرگندويي کوي.

باميان يوه غرنۍ سيمه ده چې د کرنې وړ ځمکې يې لږې، خو ډېرې ښکلې درې او طبيعي منظرې لري او د سيلانيانو او گرځندويانو پاملرنه يې ځانته راگرځولې ده.

غرنی اقليم لري چې واورين او ډېر سوړ دی. اوړی يې لنډ او ژمی يې ډېر اوږد دی. د غنمو کښت پکې لږ او کچالو يې تر ټولو مهم کرنيز پيداوار گڼل کيږي. دچنار د ونو ځنگلونه هم پکې ډېر دي. د باميانو سيند او د غرنيو سيمو چينې يې د ځمکو د خړوبولو لپاره د اوبو مهمې زيرمې جوړوي. ډېر وگړي يې په مالدارۍ او د لاسي صنايعو په جوړولو بوخت دي. د بابا غره لمنو او د اژدر په دره کې دکاني او بو زيرمې لري چې د روغتيا لپاره ډېرې گټورې دي. واړه او لوی کانونه هم لري. د حاجي گگ د اوسپنې کان

يې ډېر مشهور دی.

دغه ولايت د خپل غرني موقعيت لرلو له امله پخوا د تگ راتگ په برخه کې ډېرې مواصلاتي ستونزې درلودې، خو اوس دا ستونزې تر ډېره حل شوې او يا د له منځه تللو په حال کې دي.

مرکز يې د باميان ښار دی او څو مشهورې ولسوالۍ يې دا دي:

شيبر، کهمرد، يکاولنگ، پنجاب، ورس او نورې.

باميان ډېرې ښې اوبه، هوا، ښکلې او په زړه پورې طبيعي منظرې، د ليدلو وړ ځايونه او ډېر زيات لرغوني تاريخي اثار لري. دا ټول زموږ د هېواد وياړلي فرهنگي ميراثونه گڼل کېږي، بايد ساتنې ته يې هر اړخيزه پاملرنه وشي.




د متن لنډيز:

باميان زموږ د هېواد په مرکزي برخه کې پروت ولايت دی. ډېره تاريخي لرغونتيا، او بډای فرهنگي تاريخي اثار لري. دا يو غرنی ولايت دی. د کر وړ ځمکې يې کمې، خو ډېرې ښکلې او سمسورې درې او په زړه پورې طبيعي منظرې لري. د دې ولايت زياتره وگړي په مالدارۍ او د لاسي صنايعو په جوړولو بوخت دي. په فرهنگي لحاظ اوس د چټک پرمختگ په حال کې دی.

## فعالیتونه

۱_ ځینې زده کوونکي دې متن د ټولګي په وړاندې ولولي.

۲_ هغه لغتونه چې ښوونکي د متن د مفهوم او محتوا د توضیح او تشریح په مهال پرتخته لیکلي، په خپلو کتابچو کې و لیکي.

- زده کوونکي دې د هغو نورو ولایتونو نومونه چې دوی یې پیژني، په خپلو کتابچو کې ولیکي او په وارسره دې هغه د ټولګیوالو په وړاندې ولولي.

۳_ ځینې زده کوونکي دې د ټولګي په وړاندې د متن د هغې برخې د مفهوم په هکله چې د دوی خوښېږي، خبرې وکړي.

۴_ دا لاندې پوښتنې ځواب کړئ:

- لرغوني تاریخي اثار کوم دي او څه ارزښت لري؟
- په بامیانو کې کوم تاریخي اثار او ځایونه شته؟
- داسې کوم بل ولایت پیژنئ چې لرغوني تاریخي اثار او ځایونه پکې شته؟

۵_ د جملو دا لاندې تش ځایونه په پنسل سره په مناسبو کلمو ډک کړئ.

- بامیان د هېواد په ............ برخه کې پروت دی.
- په بامیانو کې د هوارې ځمکې په پرتله .............. زیات دي.
- بامیان ښکلې درې او په زړه پورې ................ لري.

## کورنۍ دنده

د خپلې کورنۍ یا نورو مشرانو څخه وپوښتئ چې د هېواد په کومو ولایتونو کې ډېر زیات لرغوني تاریخي اثار شته. راټول کړي معلومات د بلې ورځې په پښتو درسي ساعت کې د ټولګیوالو په وړاندې ولولئ.

شپږویشتم لوست

# سره میاشت

تاسو داسې خیریه ټولنې یا ادارې پیژنئ چې د ناورېو طبیعي پېښو یا جګړو له امله له زیانمن شوو وګړو سره مرستې کوي؟

په ملي او نړیواله کچه ځینې داسې ادارې شته چې له مصیبت ځپلو سره په ځانګړې توګه له هغو کسانو سره چې د طبیعي افتونو (زلزلو، سیلابونو او نورو) او جګړو له امله زیانمن شوي، مرستې کوي. په دې ډول خیریه ادارو کې یوه هم ((سره میاشت)) ده چې دلته یې په دې لوست کې درپیژنو.

بېوزلو او محتاجو وګړو ته د خوراک، څښاک، استوګنې، روغتیا، ښوونې، روزنې، کارکسب او داسې نورو شیانو برابرول د مرستندویه او خېریه ټولنو دندې دي.

دا خیریه او مرستندویه ټولنې هم په نړیواله او هم په ملي کچه د نړۍ په هېوادونو کې موجودې دي.له دغو مرستندویه ټولنو څخه یوه هم ((سره میاشت)) ده چې د نړۍ په ټولو هېوادونو کې شته او په بېلا بېلو نومونو یادېږي.

د مثال په ډول په عربي هېوادونو کې یې د ((هلال احمر)) او په لویدیځه نړۍ کې یې Red Cross ((سور صلیب)) بولي.

د دې مرستندویې ټولنې لومړنی بنسټ په ۱۸۶۴ م. کال د نولسمې پېړۍ د جګړو په بهیر کې کېښودل شو چې په بشري ټولنه کې ډېره مرګ ژوبله شوې وه. موخه یې د جګړو پر مهال د ټپیانو، د جګړې له بندیانو سره مرسته کول وو. لومړی سړی چې ددغسې یوې ټولنې د جوړولو فکر ورسره پیدا شو، د سویس د هېواد استوګن هانري دونانت نومیده چې له همدې امله د دغې مرستندویې ټولنې د بنسټګر ویاړ ورپه برخه شوی دی.



زموږ په هېواد کې هم دغه مرستندویه ټولنه له ډېرو کلونو را هیسې شته او په بېلابېلو نومونو یاده شوې ده.

لومړی ځل چې په ۱۳۰۸ هـ . ش. کال تاسیس شوه، د ((مجلس امداد یه)) په نوم ونومول شوه. په ۱۳۱۱ هـ . ش. کال یې ورته د ((محراب احمر)) نوم ورکړ.

په ۱۳۱۳ هـ . ش. کال يې نوم ((هلال احمر)) شو او په ۱۳۳۰ هـ . ش. کال د ((افغاني سرې مياشتې ټولنه)) ونومول شوه.

د افغانستان د ((سرې مياشتې ټولنه)) په ۱۳۳۴ هـ . ش. کال د سره صليب د نړيوالې کميټې له خوا په رسميت وپېژندل شوه او د دغې نړيوالې ټولنې غړيتوب يې تر لاسه کړ.

په نړيواله کچه په اسلامي هېوادونو کې د دغې مرستندويې ټولنې د پېژندنې لويه نښه هلال يا مياشت ده چې سور رنګ لري او په غير اسلامي هېوادونو کې د دې ټولنې نښه په سپينه ځمکه باندې د صليب علامه ده چې هغه هم سور رنګ لري او ((سورصليب)) يې بولي.

سور صليب يوه نړيواله مرستندويه ټولنه او اداره ده. هر چېرې د جګړې له قربانيانو، غم ځپلو او بېوزلو سره ډول ډول مرستې کوي. دا ټولنه د چا عقيدې، رنګ، ژبې او توکم ته نه ګوري. هر څوک چې هر چيرې مرستې ته اړوي، د هغوی د مرستې لپاره ځان رسوي او خپلې مرستې د هغوی په واک کې ورکوي. همدارنګه د بېلا بېلو افتونو، زلزلو، او سيلابونو په وخت کې هم له زيانمنو کسانو سره مرستې کوي.





د جګړې پر مهال د دې ټولنې روغتيايي ډله د ټپيانو درملنه کوي. او د علاج لپاره يې روغتونونو ته ليږدوي. د جګړې د بنديانو او ورکو شوو کسانو احوال معلوموي، د

هغوی لیکونه او پیغامونه یې کورنېو او خپلو خپلوانو ته رسوي، یا د هغوی د تبادلې په برخه کې هم مرسته کوي.

د سره صلیب یا هلال احمر له نړیوالې ټولنې یا کمیټې سره د ټولې نړۍ هېوادونه له خپل وس او توان سره سم مرسته کوي. هغوی بیا مرستې د نړۍ بېلا بېلو هېوادونو او ولسونو ته د اړتیا په وخت کې رسوي او په دې ډول خپله بشري ټولنیزه دنده ترسره کوي. په ټوله نړۍ کې د بېلا بېلو هېوادونو دولتونه، عام خلک او په تېره پانګه وال له خپلو داسې ټولنو سره مالي مرستې کوي.

زموږ د هېواد د سرې میاشتې ټولنې د خپل جوړېدو له پیل څخه د هېواد په بېلابېلو سیمو کې د طبیعي افتونو او جګړو د رامنځته کېدو له امله له مصیبت ځپلو او کډوالو سره تر خپله توانه لازمې مرستې کړې دي او دا لړۍ روانه ده. زموږ دغې ټولنې د هېواد په دننه کې له مرستو سربېره له هېواد څخه بهر هم مرستې کړې دي او خپله نړیواله دنده یې سرته رسولې ده، خو تر ټولو مهمه دا ده چې د سرې میاشتې ټولنه له مالي پلوه په پښو ودرېږي.

زموږ پانګه وال هېوادوال هم باید له دغې مرستندویې خیریه ادارې سره مالي مرسته وکړي او له دې لارې د سرې میاشت مالي بنسټ پیاوړی کړي چې مصیبت ځپلو او زیانمن شوو هېوادوالو او ان دا چې د نړۍ نورو خلکو ته پخپل وخت د مرستې رسولو جوګه شي.

په هېواد کې له مصیبت ځپلو او اړو خلکو سره مرسته کول یوازې د سرې میاشتې د ټولنې دنده نه، بلکې دا د هر بااحساسه انسان دنده ده چې له اړو خلکو سره په خپل توان له مرستې کولو څخه ډډه ونه کړي، ځینې به مالي مرستې ته اړه لري، ځینې به د یو ښه او هوسا ژوند لپاره لازمې لارښوونې ته اړه لري. په هر حالت کې هغوی مرستې ته اړ دي او باید له هغوی سره په انفرادي توګه او هم د سرې میاشتې او نورو خیریه ټولنیزو ټولنو له خوا مرستې وشي.

د متن لنډيز:

سره مياشت يو خيريه مرستندويه ټولنه ده چې له مصيبت ځپلو سره مرستې کوي. دا ټولنه زموږ په هېواد کې څولسيزې د مخه تاسيس شوې. لومړی د ((مجلس امداديه)) بيا د ((محراب احمر)) وروسته د ((هلال احمر)) او په پای کې په ۱۳۳۰ هـ . ش. کال د سرې مياشتې په نوم ونومول شوه. دا ټولنه د سره صليب د نړيوالې ټولنې غړيتوب لري. د نړيوالو مرستو او کورنيو مرستو او د خپلو ملکيتونو د عايداتو له مخې له اړمنو خلکو سره مرسته کوي.

## فعاليتونه

۱ــ زده کوونکي دې په وارسره د متن يو يو پراگراف ولولي.

۲ــ زده کوونکي دې په خپلو کتابچو کې د متن د عمومي محتوا په رڼاکې دغه لاندې جمله اوږده کړي او د څو جملو يو عبارت دې وليکي:

سره مياشت يوه خيريه مؤسسه ده چې له مصيبت ځپلو وګړو سره مرسته کوي. دا مرستې . . . .

- خپل ليکلي عبارتونه دې د ټولګيوالو په وړاندې په لوړ غږ ولولي.

۳ــ دې لاندې پوښتنو ته ځواب ووايئ:

- د سرې مياشتې مرستندويې ټولنې بنسټ کله او ولې کېښودل شو ؟
- سره مياشت زموږ په هېواد کې کله رامنځته شوې او په کومو کومو نومونو ياده شوې ده ؟
- سره مياشت په کومو حالاتو کې له خلکو سره مرسته کوي ؟
- که ستاسې په کلي يا سيمه کې کومه طبيعي پېښه رامنځته شي، له خپل توان سره سم به څه مرسته وکړئ ؟

۴ــ ځينې زده کوونکي دې د ټولګي مخې ته راوبلل شي چې د درس د عمومي

محتوا او مفهوم په اړه خبرې وکړي.

۵ـ زده کوونکي دې په درېو ډلو وویشل شي: یوه ډله دې له متن څخه داسې کلمې را واخلي چې په ((س)) توري پیل شوې وي، بله دې په ((ت)) توري او بله دې په ((هـ)) توري پیل شوې کلمې له متن څخه پخپلو کتابچو کې ولیکي او هغه دې په مناسبو جملو کې وکاروي.

۶ـ یو زده کوونکی دې دګل پاچا الفت د شعر دا لاندې څو بیتونه په تخته ولیکي او ځینې زده کوونکي دې پورته شي چې د هغو مفهوم په خپلو الفاظو ووايي:

ژاړي په غمونو کې خوا خوږې له هر چا سره
سل پتنګان سوزي د یوې شمعې ژړا سره
ډک زړګی له اوښکو ګرځي وریځې په اسمان کې بیا
څه ژړا ملګرې ده د ژوند یوې بریښنا سره
ټول باغ ژړېدلی څکه اوښکې دي د ګل په مخ
ډېر لګه لاله داغلي زړونه شته صحرا سره
نه ښايي انسان ته چې د بل په غم غمجن نه شي
لویه بدبختي ده چې څوک نه ژاړي له چا سره

## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د کور، کوڅې او یا کلي له مشرانو څخه وپوښتي چې که د دوی په یاددښت د طبیعي پېښو له مصیبت ځپلو سره سرې میاشتې او یا کوم شتمن شخص کله مرسته کړې وي، هغه دې د یوې خاطرې په توګه ولیکي او په بل پښتو درسي ساعت کې دې یې د ټولګیوالو په وړاندې ولولي.

# صدر خان خټک



تاسې پښتوژبې ته د خوشحال خان خټک د کورنۍ د ادبي خدمتونو په اړه څه اورېدلي دي؟

په یوولسمې او دولسمې هجري پېړیو کې پخپله خوشحال خان خټک او د هغه کورنۍ پښتو ژبې او ادب ته د ستاینې وړ خدمتونه کړي دي. دوی د منظومو او منثورو اثارو په لیکلو سره پښتو ادب ته ډېره بډاینه وربښلې ده. د خوشحال خان په زامنو کې څو تنه ډېر نومیالي شاعران تېر شوي دي. له هغو څخه یو یې صدرخان خټک دی چې په دې لوست کې یې در پېژنو.

صدرخان خټک د پښتو د نوميالي شاعر او فرهنګپال شخصيت خوشحال خان خټک زوی و. د زوکړې کال يې په ځينو ادبي څېړنو کې ۱۰۶۵ هـ . ق. اټکل شوی دی.

د صدرخان زده کړه او د ښوونې او روزنې بهير د خپلې علمي فرهنګي کورنۍ په چاپېريال کې، په ځانګړې توګه پخپله د خوشحال خان خټک په لاس تر سره شوی دی.

صدرخان پخپله هم دې ټکي ته اشاره کوي:

| | |
|---|---|
| زما پلار ځای يې جنت شه | په اولاد يې برکت شه |
| تربيت يې ډېر زما کړ | هر تعليم يې وما را کړ |
| په تعليم يې سخندان کړم | په ويل يې سخن ران کړم |
| چې يې درست په دافنون کړم | په ويل يې نور ما ذون کړم |

صدرخان خټک د خټکو د کورنۍ يو عالم او فرهنګيالی شخصيت و. پياوړې علمي او ادبي څېره يې موږ ته د هغه له خپلو راپاتې منظومو اثارو څخه ډېره ښه راجوتېدلی شي.

نوموړي پخپلو شعرونو کې له خپل نامه سره ((خوشحال)) د تخلص په توګه راوړی او له همدې امله د ((صدرخوشحال)) په نوم له ادبي شهرت څخه برخمن شوی دی.

له صدرخوشحال څخه ځينې منظوم ليکلي کتابونه راپاتې دي. په هغو کې يو ((دلی او شهی)) نوميږي. دا يوه ملي ولسي کيسه ده چې په ۱۱۱۰ هـ . ق. کال په نظم شوې ده. بل کتاب يې د ((ادم خان درخانی)) مشهوره ولسي کيسه ده. دايې په ۱۱۲۴ هـ.ق. کال په نظم ليکلې ده. دا دواړه اثار يې د پېښور پښتو اکاډمي له خوا چاپ شوي دي. نوموړي د ((معجزات رسولﷺ)) او ((د حضرت علي جنګنامه)) په نومونو دوه نور منظوم کتابونه هم لري چې قلمي نسخې يې شته، خو تراوسه چاپ شوي نه دي.

صدرخان د اشعارو ديوان هم درلود، خو تر اوسه تر لاسه شوی نه دی، ځينې خواره واره شعرونه (غزلې، قصيدې او مخمسونه)(۰) يې شته دي چې موږ ته د نوموړي د شعر

او ادب د قوت ښه څرګندويي کولای شي.

صدرخان خټک په ځوانۍ کې له خپل پلار سره د ملي مبارزې د ډګر او سنګر ملګری و. وروسته يې بيا د افضل خان خټک د سردارۍ پر مهال په ۱۱۲۰ هـ . ق . کې د تيري د فوجدار دنده ترسره کوله.

د صدرخان خټک ژوند تر ۱۱۲۴ هـ . ق. کال پورې باوري دی. تر دغه کاله پورې افضل خان خټک د خپل اثر ((تاريخ مرصع)) د پيښو په بهير کې د ده نوم راوړی دی. تر دې وروسته بيا نه ده جوته چې تر کومه پورې به ژوندی و. دلته د بېلګې په توګه هغه شعر راوړو چې د خپل پلار (خوشحال خان خټک)په مړينه يې د ويرنې په ډول ويلی دی:



نور دې وارو فرزندانو درته شا کړه
مګر ستا په خدمت ما ترلې ملا ده
که دې نور اولاد دولت وګاټه موږ ته
لويه ګټه د دولت د تا رضا ده

که ته ولاړې زه دې وسپارلم غم ته
دا دې لويه غمخواري کړې زما ده
چې ستا غم په سر لرم زما څه غم دی
ستا د غم سايه زما په سر هما ده
ستا لړ غم به زه هرګز پرې بدل نه کړم
په دنيا چې څه هوس خوښي هوا ده
ته مړ حوت کې سنه زر سل دويمه خور وه
ورځ جمعه د ځاښت په وخت دې بيله سا ده
لا به کله شي سبا ((صدر خوشحاله))
د آشنا د ديدن ژمنه په سبا ده

## څرګندونې

**غزل**: د نظم يو ډول دی چې د بيتونو شمېر يې له پنځو څخه تر پنځلسو پورې وي. ټول بيتونه يې په يو وزن وي او د قصيدې په څېر په قافيه کې له مطلع څخه پېروي کوي. لومړي بيت ته يې ((مطلع)) او وروستي بيت ته يې ((مقطع)) وايي.

**قصيده**: لغوي معنا يې قصد او اراده ده او په ادبي اصطلاح د نظم هغه ډول دی چې تر يوې مطلع لاندې ويل کېږي. د بيتونو شمېر يې معمولاً تر غزل زيات له شپاړسو بيتونو تر ۲۰۰ پورې او يا له هغو نه زيات هم رسيدلی شي. هره قصيده يوه مطلع، مقطع، نسيب او تشبيب (تغزل) هم لري.

**مخمس**: د شعر يو ډول دی چې مطلع او بندونه يې پنځه پنځه مسرۍ لري. پنځه واړه مسرۍ يې يو ډول قافيه لري. بندونه يې پنځه په يوه قافيه او شپږم له مطلع سره هم قافيه وي.

د متن لنډيز:

د خوشحال خان خټک د فرهنګيالیو زامنو په ډله کې صدرخان خټک هم د لوړعلمي او فرهنګي شخصيت خاوند دی. نوموړی په علمي شخصيت سربيره، پياوړی شاعر هم و. په شعرونو کې يې خپل نوم صدر خوشحال راوړی دی. له ده څخه د ((دلی شهی))، ((ادم خان درخانی))، ((معجزات رسول)) او ((د حضرت علي جنګنامه)) په نومونو منظوم ليکلي اثار راپاتې دي. د اشعارو د يوان يې تراوسه لاس ته نه دی راغلی. خواره واره شعرونه يې شته دي. تر ۱۱۲۴ هـ. ق. کال پورې يې ژوند باوري دی.

## فعاليتونه

۱ـ زده کوونکي دې متن په خپل خپل وار په لوړ غږ ولولي.

۲ـ زده کوونکي دې په دوو ډلو بېل کړای شي: يوه ډله دې له متن څخه ((خاص نومونه)) او بله ډله دې ((صفتونه)) لست کړي. د دواړو ډلو استازي دې هغه د ټولګي په وړاندې ولولي.

◆ بيا دې د يوې ډلې استازی يو يو خاص نوم پرتخته وليکي، د بلې ډلې زده کوونکي دې هغه په مناسبه جمله کې وکاروي.

◆ د بلې ډلې استازی دې لست کړي صفتونه پرتخته وليکي او د هغې بلې ډلې يو يو تن دې هغه په مناسبه جمله کې وکاروي.

۳ـ ځينې زده کوونکي دې د متن د مفهوم او محتوا په اړه زده کړي معلومات نورو ټولګيوالو ته ووايي.

۴ـ دې لاندې پوښتنو ته ځوابونه ووايئ:

◆ صدرخان خټک کوم کتابونه ليکلي دي؟

- تاسې د صدرخان د ادبي شهرت لامل څه ګڼئ؟
- په متن کې د صدرخان خټک له لومړي شعر څخه مو څه مفهوم واخیست؟

۵_ د دې لاندې پوښتنې سم ځواب په پنسل په نښه کړئ:

الف: دلې او شهې منظومه کیسه خوشحال خان خټک لیکلې ده.

ب: عبدالقادر خان خټک لیکلې ده.

ج: صدرخان خټک لیکلې ده.

د: له دې پورته شاعرانو څخه یوه هم نه ده لیکلې .

- د لاندې جملو په تشو ځایونو کې مناسبې کلمې وکاروئ:
- صدرخان خټک د .................. زوی و.
- ادم خان درخانی .................. په نظم لیکلی دی.
- صدرخان تر .................. کال پورې ژوندی و.

## کورنۍ دنده

د خپلې سیمې د کوم پیژندلي شاعر د ژوند او شعر په هکله په کورکې لنډ معلومات ولیکئ او د بلې ورځ په پښتو درسي ساعت کې یې د ټولګیوالو په مخکې ولولئ.

ادبیات یوازې شعر او نثر نه دی، هر څه چې په لوستونکو او اورېدونکو مثبته اغېزه وکړي، پخپله د ادب یو ډول دی.

(اناتول فرانس)

اته ویشتم لوست

# د ولسي ادب ډولونه او ځانګړتیاوې



- تاسې په خپله سیمه کې داسې څوک پیژنئ چې نالوستي وي، خو شعرونه وايي ؟
- داسې څوک درمعلوم دی چې کله کیسې وايي ناري او غړونه هم پکې په خواږه غږ وايي.

هر ولس دوه ډوله ادبیات لري: یو یې هغه لیکلي ادبیات دي چې په ټولنه کې د باسواده لوستو وګړو له خوا رامنځته یا ویل شوي، لیکل شوي او خوندي شوي دي. او بل هغه ادبیات دي چې د ټولنې د نالوستو یا بې سواده او عامو ولسي وګړو له خوا رامنځته یا ویل شوي او په شفاهي بڼه له یو نسل څخه بل ته لېږدیدلي وي. دې ادبیاتو ته ((ولسي ادبیات)) وايي چې په دې لوست کې پرې په لنډ ډول بحث کوو او د هغو د بېلا بېلو ډولونو نمونه دریېژنو.

ولسي ادبیاتو ته شفاهي او فولکلوري ادبیات هم وايي. دا ادبیات د هر ولس او ټولنې د ادبیاتو د تاریخ ستره او مهمه برخه جوړوي.

پښتون ولس د افغاني ټولنې د یوې سترې برخې په توګه د ولسي ادبیاتو ډېره بډایه او ارزښتمنه پانګه لري. زموږ خلکو د پیړیو په اوږدو کې خپلې ډېرې هیلې، ارمانونه، غوښتنې، خوښۍ، غمونه، مینې او د ټولنیز ژوند نور ډېرکره وړه په خپلو ولسي ادبیاتو کې منعکس کړي دي او هغه بیا په شفاهي ډول له یو نسل څخه بل ته لیږدېدلي او تر موږ رارسیدلي دي.

عام ولسي وګړي که څه هم ډېر یې لیک لوست نشي کولی، خو پیاوړی هنري او ادبي ذوق لري. دوی خپل دغه ادبي ذوق د ولسي ادبیاتو په بېلو بېلو کالبونو کې ځایوي، پیښې او موضوعات په ډېره ساده، خوږه ژبه او په زړه پورې بڼه بیانوي.

د پښتو ولسي ادبیات لومړی په دوو سترو برخو وېشل کېږي:

منظوم ولسي ادبیات، نثري ولسي ادبیات

## لومړي ـ منظوم ولسي ادبیات:

د ولسي ادبیاتو منظومه برخه زموږ د ولس د هنري او ادبي استعداد ډېره په زړه پورې ارزښتناکه معنوي شتمني او پانګه ده. د ادبیاتو دا برخه موږ د خپل ولس د ټولنیز ژوند یوه رښتینې هنداره بللی شو.

د پښتو منظوم ولسي ادبیات په دوو څانګو وېشل کېږي: یوې ته یې عام ولسي شعرونه یا سندرې وايي او بلې څانګې ته یې خاصې ولسي سندرې یا شعرونه وايي.

**عام ولسي شعرونه یا سندرې:** هغه شعرونه دي چې شاعر یا ویناوال یې معلوم نه دي او د ټول ولس ګډ مال بلل کېږي. په دې شعرونو کې دا لاندې ډولونه شامل دي:

(۱) د میندو سندرې (۲) د ماشومانو سندرې (۳) منظوم اړونه (چیستانونه) (۴لنډۍ (۵) سروکي (۶) د اتڼ نارې (۷) د نکلونو نارې (۸) کاکړۍ غاړې (۹) تاریخي نارې

(۱۰) منظوم فالونه (۱۱) منظوم متلونه (۱۲) د ښځو سندرې او نور.

**خاصې ولسي سندرې:** دا هغه سندرې یا شعرونه دي چې ویناوال او شاعران یې په ولس کې معلوم او پیژندل شوي وګړي دي.

دا شعرونه دا لاندې ډولونه لري:

(۱) رباعي (مقام) (۲) غزل (بدله) (۳) چاربیته (۴) لوبه(۵) بګتۍ (۶) داستان

## دویم ـ نثري ولسي ادبیات:

ولسي نثرونه هغه اوږدې او لنډې خوږې ادبي ویناوې دي چې په ولس کې رامنځته کیږي. دغه ویناوې د ټول ولس له خوا کره او پخې شوې او بیا خوله په خوله، سینه په سینه د پیړیو په اوږدو کې له یو پښت یا نسل څخه بل ته لیږدیدلي دي.

د پښتو منثور ولسي ادبیات ډېر ډولونه لري، څو مشهور یې دا دي:

(۱) ولسي نکلونه (۲) وړې ولسي کیسې (۳) منثور متلونه (۴) اصطلاحات او محاورې (۵) ټوکې ټکالې (۶) ولسي ننداره (۷) رمزونه او کنایې (۸) تکیه کلامونه (۹) کرکې او انګیرنې (۱۰) ستړې مه شې او په مخه ښه (۱۱) دعاوې او ښیراوې (۱۲) کیسۍ (۱۳) روایات او نور.

موږ د ولسي ادبیاتو د منظومو او منثورو برخو لنډه پیژندنه وکړه او د هغو د بېلا بېلو ډولونو مو یوازې نومونه واخیستل، د بېلا بېلو ډولونو پوره پیژندنه او بېلګې به یې په وروسته لوړو ټولګیو کې ولولئ. دلته د دې ادبیاتو ځینې ډېرې عامې ځانګړنې هم درپیژنو:

۱ـ ولسي ادبیات د موضوع په لحاظ د ولسي او کلیوالي ژوند او ټولنیزو اړیکو ښه څرګندويي کوي. ولسي کلیوال ژوند او چاپېریال پکې منعکس کیږي.

۲ـ د ولسي ادبیاتو (نظم او نثر) ژبه ډېره ساده، سوچه او د خلکو له ورځنۍ محاورې سره برابره وي.

۳_ په دې ادبیاتو کې ډېرې لوړې مبالغې او له حقیقته لېرې خبرې نه لیدل کېږي.

۴_ د پردیو ژبو اغېزې په دې ادبیاتو کې ډېرې کمې دي.

۵_ دا چې د دې ادبیاتو زیاته برخه د نالوستو او بېسواده وګړو د ذهن او فکر محصول ده او رامنځته کوونکي یې په ولس کې اوسېږي د خپل ژوند د چاپېریال زیات مسایل پکې کټ مټ انعکاس مومي.

۶_ په ولسي ادبیاتو کې ښکلي والی، ربښتینوالی او اسانوالی په ډېره ښه بڼه څان ښکاره کوي.

دا چې زموږ ولسي ادبیات زیاتره په ولس کې په نالیکلې بڼه خواره واره شته، د دې لپاره چې له هېرېدنې او ورکېدنې وژغورل شي، باید چې د هغو راټولولو او په کتابي بڼه چاپ او خپرولو ته ځانګړې پاملرنه وشي.

دلته د ولسي منظوم ادب له ډولونو څخه د چاربیتې، نیمکۍ او بګتۍ څه برخې د بېلګې په توګه راوړو:

۱_ چاربیته: د پښتو د ولسي شعرونو یو مشهور او په زړه پورې ډول دی چې اوږده اوږده حماسي او عشقي ډول ډول مضامین په کې راوړل کېږي. یو سر لري او ورپسې بندونه راځي. د هر بند په پای کې قافیه تکرارېږي:

سر: په چپ کې ډال په ښي خنجر نیسمه — غلیم ته مخه برابر نیسمه
یا به له صدقه خپل وطن شي زما — یا به په سرو وینو کفن شي زما

×××

بند: په دروغو نه دي دغه لاپې زما — په غوړو واوره واړه پاکې زما
که چېرې برید مې یو ځل راغی په تا — پوه شه اجل دی دا چې راغی په تا
ماته وصیت د مور او پلار شوی دی — په یو ځل نه په څو څو وار شوی دی
د ننګ پر ځای ورکوئ سر زامنو — مختورن مه شئ په محشر زامنو
وصیت د پلار به ګاهي هېر نه کړمه — څو ځان د هغه پلار په څېر نه کړمه
کله به هېر د پلار سخن شي زما — یا به په سرو وینو کفن شي زما

۲ــ نیمکۍ: دا يو ډول ولسي شعر دی چې له لنډیو سره یو ځای ویل کېږي. دوه مسرۍ وي چې کله دواړه برابرې او کله یوه لنډه او بله اوږده وي.

بېلګه: پاس په باړه کې اوبه ګډې وډې ځینه      شینواري لونګینه

۳ــ بګتۍ: د پښتو يو غوره او خوږ ولسي شعر دی. د چاربيتو په څېر يو سر لري چې په عمومي ډول يو بيت وي. دا شعر له ساز سره په ډېره تېزه او خوندوره بڼه ویل کېږي.

لاړه د ګودر په لورې ما ویل ارمان دی
دې ویل خفه نه شې یاره خدای مهربان دی
لاړه د ګودر په لورې قدم په ناز کا
مسته خیالي ګره جلۍ دورې د باز کا
نن یې رقیبان بللي ورسره راز کا
مړ به شم طاعون به مې شي مرض ګران دی

د متن لنډيز:

ولسي ادبيات د هر ولس د ادبیاتو د تاريخ یوه ځانګړې او ډېره مهمه برخه جوړوي. دا ادبيات هم په لومړي سر کې په نظم او نثر بېلېږي او بیا هره برخه یې ځانته بېل بېل ډولونه او شکلونه لري. ولسي ادبيات يو لړ داسې ځانګړنې لري چې د هغو له مخې له نورو لیکلو ادبیاتو څخه بېلېږي. د دې لپاره چې د دغو ادبياتو زياته برخه نالیکلې ده، بايد چې راټوله او له ورکېدو او هېرېدو څخه وژغورل شي.

## فعالیتونه

۱ــ ځینې زده کوونکي دې متن د نورو ټولګیوالو په وړاندې په لوړ غږ ولولي.

۲ـ ټولګی دې په دوو ډلو ووېشل شي. یوه ډله دې د منظومو ولسي ادبیاتو ډولونه لست کړي او بله دې د منثورو ادبیاتو د بېلا بېلو ډولونو نومونه ولیکي. بیا دې د هرې ډلې استازی هغه د ټولګي په وړاندې ولولي.

۳ـ زده کوونکي دې د ټولګي مخې ته راوبلل شي چې د ولسي ادبیاتو په اړه خپل معلومات وړاندې کړي.

۴ـ دې لاندې پوښتنو ته ځوابونه ووایئ:

- ولسي ادبیات په نورو کومو نومونو یادېږي؟
- ولسي ادبیات کومې ځانګړتیاوې لري؟
- ولسي شاعران معمولاً کوم وګړي وي؟
- عام ولسي شعرونه او خاص ولسي شعرونه څه توپیر لري؟
- د نثري ولسي ادبیاتو مشهور ډولونه کوم دي؟

۵ـ په لاندې جملو کې تش ځایونه په مناسبو کلمو په پنسل سره ډک کړئ:

- ولسي شاعران زیاتره ................ وګړي وي.
- ولسي ادبیاتو ته ............ یا ............... ادبیات هم وایي.
- هغه ولسي شعرونه چې شاعر یې معلوم وي ........... ورته وایي.
- هغه ولسي شعرونه چې ......... یې معلوم نه وي .......... یې بولي.

۶ـ متن په غور ولولئ، صفتونه پکې په نښه او پخپلو کتابچو کې یې ولیکئ.

## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې په کور کې پخپله خوښه یوه فولکلوري کیسه، یا څو لنډۍ او یا هم څو متلونه ولیکي، په راتلونکي پښتو ساعت کې دې یې د ټولګیوالو په وړاندې ولولي.

# وییپانگه (لغتونه)

## ((الف))

**اجتماع:** ټولنه

**احسن تقویم:** په ښکلي بڼه او صورت

**اخوت:** ورورولي

**ارکسترا:** ډله ييزه موسيقي

**ازل:** هغه وخت چې پیل یې نه وي معلوم

**استازی:** نماینده

**استازیتوب:** نماینده‌گي

**اسعار:** پیسې

**اغیزناک:** تاثیرلرونکی

**افت:** مصیبت، غم

**افراط:** زیاتوب، له اندازې زیات

**اقلیم:** اب وهوا

**امان:** امن

**اندړ:** یوه پښتني قبیله ده

**انس و جن:** انسان او پیری

**انځورګري:** رسامي

**اوس مهال:** حال، اوس زمانه

**ایین:** لار، مسلک، عقیده، دین

**اڅکزی:** یوه پښتني قبیله ده

**اړه:** ارتباط

**اړوندتیا:** مربوطوالی

**اړینه:** ضروري

## ((ب))

**بارکزی:** یوه پښتني قبیله ده

**برخلیک:** سر نوشت

**برخمن:** برخه وال، ونډه لرونکی

**برهم:** ګډوډ

**بنسټ:** بنیاد، تهداب

**بهیر:** جریان

**بوختیاوې:** مشغولیتونه

**بوستان:** بڼ، باغ

**بډای:** شتمن، غني

**بډاینه:** شتمني

**بډایي:** شتمني

**بڼه:** شکل

**بېلګه:** مثال

## ((پ))

**پانګه وال:** سرمایه لرونکی

**پانګه:** سرمایه، شتمني

**پراګراف:** د لیکنې یوه برخه

**پردیس:** مساپر

**پرمختیا:** پرمختګ، وده

**پریکړه:** فیصله

**پلازمینه:** پایتخت

**پوښلی:** پوښل شوی

**پیاوړی:** قوي، ځواکمن

**پیرودل:** اخیستل، رانیول

**پړاو:** مرحله

**پښ:** اهنګر

**پېژندګلوي:** پیژندنه

## ((ت))

**تجمل:** ښکلي کیدل، سینګار شوی

**ترکیب:** ګډون، یو ځای شوی

**تصمیم:** هوډ، اراده، عزم

**تصویب:** پریکړه، فیصله، حکم کول

**تعادل:** برابري

**تمنا:** هیله، ارزو

**توربخن:** تور ته ورته

**توغندی:** راکټ

**توکم:** نسل، نژاد

**تېر مهال:** تېره زمانه

## ((ټ))

**ټاکلی:** تعیین شوی

**ټاټوبی:** هېواد، د اوسیدنې ځای

ټولګیوال: هم صنفیان

ټولنیز: اجتماعي

ټولګه: مجموعه

((ج))

جاویدان: همیشنی، تلپاتې

جلا وطني: له هېواد څخه لیرې کیدل

جنون: لیونتوب

جوتیږي: معلومیږي، څرګندیږي

جوګه: سیال، وړ

((ځ))

ځانګړنه: ځانګړتیا، خصوصیت، خاص والی

ځپلی: ټکول شوی، وهل شوی، خوار، غمجن

ځواک: قوت، زور

ځواکمن: د زړو او قوت خاوند

((ښ))

ښائښت: کچه غرمه

ښکندتیا: معلوموالی

ښېړنې: تحقیقات

ښښتن: خاوند

((چ))

چاپیریال: محیط، شاو خوا، ماحول

چاروکی: د واک او صلاحیت خاوند

چمتو: برابر، اماده

چور: غلا، تالا

((ح))

حمد: د خدای ﷻ ستاینه

حمدیه: ستاینیز شعر او وینا

((خ))

خواخوږي: همدردي

خواره واره: تیت پرک

خواشیني: خپګان

خوندي: محفوظ، ساتل شوی

خیریه: خیر رسوونکی

((د))

درناوی: درنښت، احترام

دریځ: موقف

دستور: حکم

دهشت: ویره، ډار

**دود:** رواج

## ((ډ))

**ډالی:** سوغات، تحفه
**ډبرین:** له ډبرې جوړ شوی
**ډله ییز:** گروپي، په گډه
**ډگر:** میدان

## ((ذ))

**ذات:** اصل، ماهیت، وجود

## ((ر))

**راتلونکی مهال:** راتلونکی وخت/زمانه
**رانغښتی:** رانغاړلی، راچاپیر کړی
**رېړول:** څورول
**رعایت:** مراعت کول، په پام کې نیول
**رفاه:** سوکالي، هوساینه
**رنځ:** ناروغي
**روحاني:** مذهبي لارښود
**روزنیز:** تربیتي
**روږدی:** عادت، معتاد

## ((ز))

**زغمل:** تحمل کول
**زنار:** د غاړې پړی او رسی
**زوال:** له برمه لویدل یا غورځېدل
**زوکړه:** زېږېدنه
**زیار:** زحمت، کوښښ، هڅه
**زیان:** تاوان
**زیرمې:** ذخیرې
**زیور:** گاڼه
**زړه بوږنوونکی:** زړه ربړدونکی

## ((ژ))

**ژباړه:** ترجمه
**ژغورل:** ساتل
**ژوبله:** ټپي کول، زخمي کول

## ((س))

**سایه:** سیوری
**سپارښتنه:** سفارش، تاکید او ټینگار
**ستایل:** صفت کول
**ستاینه:** صفت
**ستونزمن:** له مشکلاتو ډک
**ستونزه:** مشکل
**سرلیک:** عنوان

**سعادت:** نېکمرغي

**سلب:** په زور اخيستل

**سمبالښت:** سمبال شوی، مجهز شوی

**سمسور:** ښيرازه، تازه

**سملاسي:** فوري، سمدواره

**سوکاله:** ارام، هوسا

**سویل:** جنوب

**سوړ:** یخ

**سیاستوال:** سیاست مدار

**سیمه:** منطقه

## ((ش))

**شاکر:** شکر کوونکی، خوښ

**شتمن:** بډای، د مال او شتو خاوند

**شخړې:** جګړې، جنجال، لانجې

**شفاهي:** په خوله ویل

**شفیع:** شفاعت کوونکی

**شهرت:** مشهورتیا

**شهکار:** ډېر ښه، لوړ او عالي کار

## ((ښ))

**ښکېل:** نښتي

**ښیګڼې:** ګټې، نېکۍ

## ((ص))

**صدمه:** زیان، ضرر

## ((ط))

**طراوت:** ښيرازي، تازه ګي

## ((ع))

**عاطفه:** مهرباني، زړه سوی

**عجب:** حیرانوونکی

**عدم:** نشتوالی

**عرف:** رسم و رواج، عنعنه

**عظیم:** لوی

**عنعنات:** دودونه، رواجونه

## ((غ))

**غچ:** انتقام، کسات

**غور:** تاکید، دقت

## ((ف))

**فرښتې:** ملایکې

**فرهنګپال:** فرهنګپالونکی، د فرهنګ خدمتګار

**فضل**: نیکي، احسان

((ق))

**قدیم**: پخوانی

**قیامت**: محشر،وروستی، له مړینې وروسته د راپورته کیدو ورځ

((ک))

**کارنامې**: لوړکارونه، مهم کارونه

**کارو بار**: کارکسب

**کالبونه**: چوکاټونه

**کتابتون**: کتابخانه

**کچه**: اندازه، سطحه

**کرباس**: خامتا

**کرکه**: نفرت

**کرم**: احسان

**کره‌کتونکی**: نقدکوونکی

**کره**: پوره

**کلتور**: دود، دستور، ثقافت، فرهنگ

**کنډواله**: شاړ او ویجاړکور

**کرم**: غوځ

**کړه وړه**: سلوک، رویه

((گ))

**گاونډ**: ګنګ ته، څیرمه

**گوهر**: مرغلره

**گواښ**: تهدید، خطر

((ل))

**لارې چارې**: دکارونو د سرته رسولو طریقه او وسیله

**لرغونی**: پخوانی

**لنډیز**: لنډون، اختصار

**لودي**: یوه پښتني قبیله ده.

**لورینه**: پیرزو

**لیوالتیا**: ډېره مینه، او علاقه

**لیږدېدنه**: انتقال

**لړۍ**: سلسله، پرله پسې والی

((م))

**مانی**: ودانی

**مبالغې**: له اندازې او حد نه زیاتې یا پورته خبرې

**مبتلا**: اخته

**مترادفې**: ورته، یو شان

**محصول**: حاصل، لاس ته راغلی څیز

**محور**: مرکز

**مدنیت**: تمدن

**مدهش**: ویره اچوونکی

**مرستندوی:** مرسته کوونکی

**مرستیال:** معاون

**مصنوعي:** په لاس جوړ شوی

**معاصر:** اوسنی، هم عصر

**معاصرين:** هم مهالي، په يوه زمانه کې اوسيدونکي

**مفرد:** يو، ځانله

**مفکوره:** فکر، نظريه

**مقدمې:** لومړی، لومړيتوب

**مقصر:** ګناهګار

**مقيد:** تړلی، محدود

**ملتيا:** ملګرتيا

**منظوم:** نظم شوی، په شعر ويل شوی

**منعکس:** راغبرګيدل، راستنيدل، انعکاس

**مهال:** وخت

**موازنه:** برابری، انډول

**موخه:** هدف

**مېشت:** استوګن، اوسيدونکی

**مينه وال:** علاقمندان

## ((ن))

**نامتو:** مشهور، نوميالی

**ناهيلی:** مايوس

**نشه ييز:** نشه راوړونکی، نشه کوونکی

**نغښتي:** پيچلی، راتاوشوی

**نقصان:** زيان

**نوماند:** نوميالی، د نوم او شهرت خاوند

**نوميالی:** د نوم او شهرت خاوند، مشهور

**نيازی:** د پښتنو يوه قبيله ده.

## ((هـ))

**هستي:** وجود

**هلې ځلې:** هاند او هڅې، کوښښ

**همنوا:** همغږی

**هوسا:** سوکاله

**هڅه:** کوښښ

## ((و))

**واصفان:** ستايونکي، صفت کوونکي

**واورين:** واوره لرونکی

**واويلا:** شور او غوغا

**واټنونه:** فاصلې

**وربن:** پراخ، پرانيستی

**ونډه:** برخه

**وياند:** نطاق

**وياړ:** افتخار

**ويجاړ:** وران، ړنګ

**ويرنه:** مرثيه، د غم څرګندول

**وينا وال:** ويناکوونکی، ويونکی، شاعر

**وړ:** لايق، مناسب

## اخځلیکونه:


۱ـ د یونس دیوان، د عبدالله بختاني خدمتګار په زیار، کابل چاپ.
۲ـ خواږه نعتونه، فقیر محمد عباس قادریه، پیښور چاپ.
۳ـ د پښتني قبیلو جزایي، حقوقي اصلاحي قاموس، محمد ابراهیم عطایي، د افغانستان علومو اکاډمي د پښتو څیړنو نړیوال مرکز.
۴ـ پښتني لارښود، پوهاند صدیق الله رښتین، یونیورسټي بک ایجنسي پیښور.
۵ـ د پښتو ژبې لنډ ګرامر، محقق سید محی الدین هاشمي، د اریک ګرځند کتابتونو اداره.
۶ـ خیالي دنیا، قیام الدین خادم، پښتو ټولنه، کابل.
۷ـ اریانا دایرة المعارف، دویم چاپ، د افغانستان د علومو اکاډمي.
۸ـ ګنج پښتو، مولوي احمد، پېښور.
۹ـ ګیتانجلي، عبدالرؤف بینوا، پوهاند عبدالشکور رشاد په سریزه، درېیم چاپ.
۱۰ـ له تنباکو تر هیروینو پورې، سرمحقق نعمت الله اندړ، د اریک د ګرځنده خپرونو

اداره.
۱۱_ په افغانستان کې د ژوند د چاپېريال ساتنه، پوهاند داکتر حسن يار، د اريک د گرځنده کتابونو اداره.
۱۲_ فرهنگ ادبيات جهان، زهرا خانلري، شرکت انتشارات خوارزمي، ايران.
۱۳_ د بشر د حقوقو د نړيوالې اعلاميې د اصلاحاتو تشريح، ملک ستيز، د هاشمي ژباړه، د بشر د حقوقو او مدني ټولنې شبکه، کابل.
۱۴_ د افغانستان مشاهير، محقق سيد محی الدين هاشمي، د اريک د گرځنده کتابتونو اداره، پېښور.
۱۵_ په افغانستان کې لرغونې کلاگانې، پوهاند رازقي نړيوال، کابل.
۱۶_د الفت مرغلرې (شعري کليات) گل پاچا الفت، دانش خپرندويه ټولنه، پېښور.
۱۷_ پټه خزانه، محمد هوتک، د پوهنې وزارت، کابل.
۱۸_ د افغانستان د ولايتونو جغرافيه، پوهاند غلام جيلاني عارض، د اريک د گرځنده کتابونو اداره، پېښور.
۱۹_ اريانا دايرة المعارف، څلورم ټوک، اريانا دايرة المعارف ټولنه، کابل.
۲۰_ د صدر خوشحال ژوند او اثار، زرين انځور، پښتو اکاډمي، پېښور.
۲۱_ د پښتو ادبياتو تاريخ (لرغونې او منځنۍ دوره) سرمحقق زلمی هېواد مل، دانش خپرندويه ټولنه، پېښور.
۲۲_ زاهد پښتو- پښتو سيند، عبدالقيوم زاهد مشواني، دانش خپرندويه ټولنه.
۲۳_ فرهنگ تشريحي، داکتر حسن انوري، کتابخانه ملي ايران.